# د اکتشافاتو لنډه تاریخ

لیکونکی: ازابل بارکلی
مترجم: حبیب الله «تږی»

پښتو ټولنه

40

پرله پسې لمبر : (۱٦۷)

# داکتشافاتو لنډ تاريخ

له ۲۰۰۰ ق ، م څخه د اکتشافاتو تر ستر عصره پورې

ليکونکی : ازابل بار کلي




مترجم: حبيب الله ((تږی))

پښتو ټولنه

نېټه ، سرطان ۱۳۴۱

دچاپ شمېر ۱۰۰۰

# دمطالبو فهرست

# بسم الله الرحمن الرحيم

دا کتاب شاغلی مترجم حبیب الله تبزی دا کتشافاتو انځه تاریخ و باله او اصلی نوم یې دمو لف له خوا په (بې پایانه نړۍ) ترجمه کړه دای شی.
مترجم مصلحتاً هغه نوم په دغه نامه اړ ولی دی.

مانه دانه ده معلومه چه ددې اړوني مقصد به څه وی ښائی چه مترجم د موافق عقیده دخپلې عقیدې تابع کړې وي. یا ئی دلوستونکو فکر او نظر په نظر کښې نیو لی وی په دی کتاب کښې دا کتشا فاتو تاریخ په مختصر ډول راغلی چه دبشر دذهن اوفکر ار تقائې سیر او هغه علل اوعوامل بیا نوی چه دا کتشا فا تو سلسله یې تردې حده رار سو لې ده (چه دلته ئې تا سی لوستونکي بر خه گور ئی)

انسان دخپل پیدایښت له ورځې تراوسه پورې یاز مو نیز په اصطلاح له بابا دمه تردې دمه درزق اوروزۍ په لټون کښې دگیلې یې مرو او دباره سر گردانه او لا لټانده گرزېدلی او ډیر هېوادونه ئې له پښوو پستلی دی په دې تنگ او راتنگ کښې ئې ډیر کړ اوونه، لوږې او تندې، سړې اوتودې لیدلی او دژوندانه رازراز تجربې یې لاس ته راوستی دی.

په دغه یون اوحر کت کښې لکه چه دده غړی، لاس او پښې په کار لو یدلی دی فکر، ذهن اودماغ ئې هم عاطل نه دی پاتې اود ژوندانه دضرور تو نو اوغوښتنودباره ئې خپل عقل هم په کار اچولی او په رازراز اکتشافا تو بر یالی شو یدی

دا اکتشافات خو شي په خوشي او په آسانه لاس ته نه دي راغلي بلکه د ډېرو مو دو دزيا راوزحمت او د ټينگوعزمونو ، اوزدوفکرونو نتيجه ده چه دجهان په حال اود ژوندانه دسويې په لوړ ولو کښې ئې ډېر لوی بدلون راوستی دی.

دهمدغوا کتشافاتو او اختراعاتو بر کت دی چه هغه انسان چه د ځناورو له ډار ه په ځمځوا و غارونو کښې پټېده او س د هسکو لوړو شو کو ته ځېژی او دسپو ږمۍ گرځېدان او لمنې ته لاس اچوی .

شو ک چه دا کتشافاتو او اختراعاتو په شاوخوا کښې فکرو کړی او دغه راز کتابونه مطالعه کړی هغه ارومرو دانسان خدای ورکړی قوت او استعداد ته او دانسانی جد و جهد اغېزو ته ډېره ښه عقيده او خوشبينی پيدا کوی او ځان ته ئې هم اميد پيدا کېږی .

په همدغسی لحاظونو ددغسی اثارو پښتو کول د پښتو لوستونکو دپاره ډېر ضرور او ډېر مفيد معلومېږی او دښاغلی حبيب الله تېزی دغه کار د قدر وړ بلل کېږی .

ښاغلی تېزی چه يو ښه او ځوان ليکوال دی د پښتو ژبې د علمی او ادبی خدمت ډېره هيله ور ته کېږی او باور لرو چه په آينده کښې به شو مره چه دی پخېږی هغو مره به ئې آثار هم پاخه او گټوروی .زه ده ته ددغه اثر په ترجمه کو لو کورو دانی و ايم او نور ئې هم ډېر ډېر بريالیتوبو نه غواړم . گل پاچا « الفت»

لو مړی شپږ کې :

# ارغوني مصريان او د پنت ځمکه

ترکوم ځایه پورې چه موږ ته څرګنده ده د نړۍ لومړني ګرځندوی یو مصري دی چه « هانو » نومېده او دوه زره کاله پخوا له میلاد ه یې په مصر کښې ژوند کاوۀ .

البته د امنطقي هم ده چه لومړني ګرځندوی باید مصري وي . ځکه مصريان د هغو خلکو څخه دي چه د لومړي پلاد پاره مدني شوي دي .

مدنيت نژدې شپږ زره کاله پخوا په هغې ځمکې کښې چه د مېډیټرانې دشرقي پای چاپېره پرته وه - شروع شوی دی . د لته - دافریقې په شمال کښې د نیل د سیند او په کوچنۍ اسیا کښې د دجلې او فرات په وادي ګانو کښې - د ژوندانه ډېر مساعد شرایط - په لرغوني نړۍ کښې برابر وو . هوا نرمه وه . خاوره یې د کرهنې دپاره ډېره ښه وه ستر سیندونه یې د حمل و نقل دپاره ډېر ښه وسائل وو . شاوخوا سیمې یې د خامو - موادو څخه ډکې وې او پراخو سپېرو دښتو یې د پر غلګرو مخو ته طبیعي

دېوالونه وو. داسې ښکارېده چه دلته طبیعت دانسان دا نکشاف دوه اساسي شرطونه یعنې - له اړېاو وېرې څخه ازادی - خلکوته وربه برخه کړی وو.

دوېرې ددورې دلومړی سرقبائلوته، چه دمنځنی اسیا دجلګوڅخه دلته راغلل، دایوجنت ؤ. وایی چه په حقیقت کښې هم دعدن باغ ددجلې اوفرات دسیندونو ترمنځ په کوم ځای کښې جوړ ؤ. خودا چه څنګه ؤ په دې برخه کښې څه نه وایو بلکه یوازې دومره یا دونه کووچه: لرغونی انسان په همدې سیمو کښې لرمړنی ازستر په مختګ کړی دی. هغوخلکو چه بې درې زره کاله پخوا له میلاده په هغې ځمکه کښې ژوند کاوچه یې موږ مصر بولو یوبوره پخوانی اوروڼ مدنیت لاره. په دې وخت کښې هغه جلاجلاسلطنتونه چه د نیل پر غاړه منځ ته راغلی وو- واړه په یوه ملت بدل او دیوه ډېر غښتلی حکمران تر لاس لاندې راغلی وو. داحکمران فرعون بلل کېده - اودلرغونو مصریانو په عقیده نیم خدای اونیم انسان و.

مصریانو- دنوروارغونوانسانانو په څېر- یو نه بلکه ډېرزیات خدایان لرل. لکه «را» یا «امان را» دلمرخدای «اوزیروس» دمړوخدای او «غو یی اپس» چه دنیل خدای اود کوچنیوخدا یانومیزبان و.

دمصریانو په عقیده ځمکه یوه قاب ته ورته وه چه له شاوخوا څخه په اوبو محاط و دوی دغه اوبه «اسما نی سیند» باله او معتقد وو چه «نیل» په جنوب کښې د یوه غره له یوه غار څخه راوزي

دوی ویل چه « دنیل خدای » په همدې غار کښې هستو گنه لري او د سیند د مدو جزر کنټرول د همده په لاس کښې دی .

په دې وخت کښې د سیند مدو جزر ډیر زیات اهمیت لاره ځکه په مصر کښې باران نه اوري او که هر پسرلی د نیل سیند نه طوفانی کید لای نو د ځمکه به هم یو هو چه کرغه وه. اما د نیل رود هر پسرلی راپورته کېد ه . او بو بې ځمکې لاندې کولې او په دې لاندې کو لو کښې یې د سیند ډیره زیاته خوړه په د غو ځمکو کښې کښینو له . د ا خاوره سپیره سره وه او څرنګه چه دلرغونو مصریانو ژوند پر کرهڼه و؛ نو یې له دې امله «دا پس» د نیل د خدای دومره ولمانځنه کوله لکه د «امان را » د ژوند دوا کد ار .

حتی لمرهم بې داوبو څخه څه نه شی راتو کولای .

مصر یانو وروسته له مر گه ژوند حق باله. دوی داسې انګیرله چه روح نه مري . مګر په دې شر ط چه جسم له فنا د څخه وساتل شي . نو له دې امله به یې د سړی جسم وروسته له مر ګه په یوه خاصه طریقه مو میایی کاؤ او په یوه ښکلی تا بوت کښې به یې کیښو ده .

په کوم جسم به چه داطریقه اجراشوه هغه ته به «مومیایی » ویل کید ه او دا شرافو او فرعونانو ، له ګکر و څخه جوړ شوی ، مر قد و نو «هر مونه » بلل کید ل .

وروسته فرعو نانو خپله خپل ځانته داسې مرقد ونه ودان کړل چه تر او سه لا د نړی دعجا ئبو په لړ کښې پاتی د ی .

دا «هرمونه» يواز ېدهغو فرعونانو اواشر افود کبرو نوياد
گا رونه ،نه دی چه پکښې خښ شوی دی .بلکه د لرغو نی مصر
دمعما را نواو انجنير انو دمهارت نمونی اودهغو مزدورانودلاس
نښې هم دی چه يې دودانو لو په غرض دومره ربړ ولشوی ځويې
زاري چاودلي اوموره شوی دی .
په دې وخت کښې مصريا نو ډ ير قوی معما ران انجينران او هر ډول
کسبگر هم ارل چه واړه خپله دهمدې خا ورې اصلی ز ا من وو .
مصر يا ن ا کثر بز گران او پر مځکه مين خلك وو . سمنـدر ځا نته
نه وو منو چه کړی. البته ددې معنا دانه ده چه گو ندې دوی بحرته کله
نه وو-ور ننوتلی . بلکه برخلاف ددې دپا ره ډ ير ز يا ت شوا هد شته
چه د و ی د شر قی ميله يتر ا نې د ډير و ز يا تو جز ا ئر وسره
سودا گری ار له . مو ږ ته شر گنده ده چه دوی « کر يت »ته څه چه
دالو ارونو د راوړ لو د پاره دلبنان ترسو احلو پورې هم تللی دی . مگر
تکړه ما نړو گان نه وو . اما سر ه له دې ټولو خبرو دو ی د وه ډ ير
لو ی لو ی دسمند ر يونو نه کړی دی . يو په ۲۷۵۰ ق . م کښې او بل
په ۱۵۰۰ ق . م کښې .
له د ې يونو نو څخه لومړنی يون د « ساهور » پا چا په وخت کښې
د « هانو » په مشرۍ و شو .
هانوی ته خپله خپل زور ډ ير ښه معلوم ؤ . ده ته البته دانه وه شر گنده چه
د ی به په تا ريخ کښې لومړنی گر ځند و ی و گڼل شي . مگر په دی
هم معتقد ؤ چه هيڅ کله چاد ا سې يو ه گرا ن يو ن ته ملا نه د ه تړ لې .

لههمدې املهکله چهدی بیړ ته مصر ته راغی، نوبې د یون کیسه دیاد ګار به ډول دیوې ډ بر ې دپا سه وګښل شوه . ډېره تراوسه هم لاشته او دهانوی او د پنټ د ځمکې په باره کښې ز موږ معلومات دهمدې ډ بر ې بر کت دی .دډبرې دپاسه کښل شوې کیسې سره سم هانوی د «حما مت» د شپا رشخه‌خپل یون شروع کړ . هیأت دنیل دشرقی غاړې پر غونډه یـواو کپـر و وروخوت اودسرې بحیرې دشما لی پا ی دښته یې په کاروان وو هله . دلته بیړۍ تیارې وې اومصریان د پنټ د ځمکې پرلوروروسپا ره شول « ترڅوچه‌دفرعون‌دپا ره دخوزې‌مسکادار و لکه‌دسرې‌ځمکې‌شهزادګی چه‌دوبږې‌اوخوف‌څخه جوړې دی او نور هغه څه چه یې دبیلوبیلوملتو نو څخه غېزوررسیدلی وُ ر اوړی »
دپنټ ځمکه دسرې بحیرې پرڅنډه دسو مالی لینډ په کو مه برخه کښې پرته‌اودسروزرو،عاج‌اوعود - دونو او « مر » څخه چه مصر یا نو دخپلو مړ و دمو میا یی کو لو دپاره ورڅخه کارا خیست ډ که وه .
د « پنټ » ځا یی خلك - چه تور پوستان وو- دبېرصیمی‌اردنې دپاره ټاك نا ستووچه دې خپل نادر ارګی - داروا وګران فلزات‌د مصریانو دکلا لی دخرخ - هنداري او نور وهغو کا لیوسره تبا د له کړی چه راوړی‌یې وو. هانوی‌خپلې بیړۍ‌دقیمتی‌شیانو نه ډ کې کړې اوبیرته‌یې مصر ته مخه‌و کړه . فرعون او هانودواړه سخت خو ښ شول .
دهانوداخبره حقیقت‌دی چه وایی: « دپاچایانوله پیدا ینبت نه‌تراوسه

پورې داسې پېښه نه ده پېښه شوې . »

بل سیاحت چه د هغه په باره کښې مفصل معلومات لرو هغه یوولس سوه کاله وروسته د هات شپ سوت ملکې په وخت کښې واقع شوی دی. هات شپ سوت د تاریخ لو مړنۍ ستره ښځه ده . دا یوه وتلې ـ ښکلې هوښیاره او تکړه حکمرانه وه . یوه له رعایاو څخه یې ورته کتلی او داسې یې ویلی دی : « ترهرڅه نه ښکلې او د یوې الهې په بڼه جوړه وه. هر کاریې د یوې الهې کار او پرتم یې هم د یوې الهې پرتم و. علیاحضرته یوه ملکه وه ښکلې او خندانه . »

د هات شپ سوت ملکې په دوران کښې جګړې نه پېښېدې . سوداګرۍ په مختګ او کړ او مصر غني او مترقي شو. دې د خپلې حکمرانۍ د دورې په نژدې نیمایی ـ د ۱۵۰۰ ق . م په شاو خوا کښې ـ فیصله وکړه چه یو سیاح د پنټ ځمکې ته واستوی . دې ویل چه « امان را » خدای دې ته سپارښت کړی دی چه باید د « مر » ونې د هغې مانۍ په چاپېرو کې کښېنوی چه دې « تیبس » ته نژدې د هغه په نامه جوړه کړې وه . دامانۍ یوه ډېره ښکلې مانۍ وه او کله چه سیاح د پنټ د ځمکې څخه بېرته راغی ملکه ډېره خوښه شوه او د یو ن کیسه یې د خپلې مانۍ پر دیوالونو کښله . دغه لیکنې تر اوسه هم د هات شپ سوت د مانۍ په کنډوالو کښې باقي پاتې دی او پوهانو د خپلې پوهنې په لاره کښې ډېرې زیاتې استفادې ور څخه کړې دی .

د امهال په دې یو ن کښې د دې پر ځای چه مصریان د ها نو په څېر

د کاروان په واسطه دښتې پښو لاندې کړی او د سرې بحیرې پر غاړه بېړۍ تیارې کړې - راساً د « کوپټاس » څخه په بېړیو کښې سپاره شول.
له دې څخه ښکاریږي چه دغه وخت داسې کوم کانال هم موجود وُ چه یې د نیل دریاب د سرې بحیرې سره مښلولو . ښکاریږي چه دهات شپ سوت د مانه‌ ږد ید یوالو نو د لیکنې څخه ښکاره شوې ده - دغه بېړۍ چه په ۱۵۰۰ ق . م کښې د پنټ پر لوري روانې شوې دي - دغو بېړیو سره یو شی دی چه مصریانو په نیل کښې د بار ی بېړیو په توګه ور څخه کار اخست .
دا بېړۍ یو ډول پیټې بېړۍ وې . وړاندې او وروسته برخې یې هم پیټې او بېړۍ د تنې څخه یوځو ابل خواو تلې وې .
داد مصریانو لرغونې بېړۍ له اره داسې جوړې وې چه دهرمونو دود انو او دپاره ډیرې ستري ډېرې په نیل کښې ښکته او پورته وچلوی . وړاندې او وروسته پیټو برخو یې د سیند په هلو کښې دبارولو او تشولو په برخه کښې سیند ته اچولوا و له سیند څخه را ایستلو سره مرسته کوله .
اما په اصل کښې ددې مطلب دپاره دوبه ډېر ښه کار ورکوی . مګر دوبه جوړول پرته دا لوار څخه امکان نه لري .
ښکاریږي چه مصریانو الوارونه نه درل نو په یې خپلې بېړۍ د هغو لرګیو څخه جوړ ولې چه او بو به راوړل او دوی ته به په ګوتو ورغلل دا لرګي به یې ښکلي پرځنګ ونښلول او بیا به یې په ډېر مهارت سره په کومه رسۍ اویا ښه مینه سره وتړل . دې بېړیو یوازې سینګا ونې

لاره چه یوه سرچپه (V) ته ورته ؤ. با دوان یې هم یووًا و بیړ ی ـ دهغو شپو په واسطه روانېدې چه یې دواړو خواوو ته نښتي وي .
دبادوا نونو څخه فقط یوازې دمو افق باد په وخت کښې کا راخستل کیدی شو . ځکه بیړ یو کیلو نه نه لرل او خلك یې دجو ړولو په چم لا نه وو پوه شوی . وروسته دشپو وهل په ولا ړ ې هم رواج شو .
دا سې گمان کیږ ي چه د غو بیړ یو د پیړ یو په تیر یدو ډ یر لږ تحول کړ ید ی . مصریان داسې خلك نه وو چه یې یوازې دسمندر سره د لچسپی نه لرله بلکه ډ یر محافظه کار هم وو ـ او کوم شی به چه ورته ښه و بر ښیده غوښتل به یې چه هغه د تل دپا ره په ها خپله بڼه وسا تي .
په پای کښې دا هم باید وویل شی چه دها تې شپ سو تې ملکې دوخت بیړ یو د سا عو رپا چا دوخت د بیړ یوسر ه ډ یر کم تو پیر لاره .
ددې خبر ې دپاره ډ یر زیات دلا ئل شته چه مصر یا نو ددې د واړ و سیا حتو نو ترمنځ بیړ یو کښې و خت په و خت د پنټ د خلکو سر ه سود اگر ی کړ ې ده . و لې کله که ځینې نو رسترسیاحتونه شوي وي هم ښا یی . مگر اسنادې له منځه تللی د ی . حتی دهانوی ډ یره هم په شکو کښې و ر که شو ې او تر څو کلو نو دمخه پورې هم دتاریخ د پا نو څخه لو ید لې وه . له همد ې ا مله « نحسی » دد و هم سیا حت د هیأ ت مشر د ې ته بیم نیولی ؤ چه گو ندې د ی دا و مې ی ـ بلا دپا ره دا سې یوه کا ر ته اقدا م کو ی .
یقین دی که د ی پوه شوی وی چه مسئله داسې نه ده ـ نو هر ومرو به یې و ضعیت بل و ي . مگر له بد ه مر غه د ې هم د هغو نو ر وډ یر و

ګرځند ویانو په دوو مړ شوچه په ده پسې د حقیقت شخه نا خبر ه‌تیر شو ی‌دی . دې‌دښت د ځمکې دوهم او ږیر ستر سیاحت ته مصر یانو پنځه بیړ ی‌ـ چه دسو دا ګری‌ـ له کا لیوشخه ږکې وې‌تیارې کړ ې . دهغو لیکنو شخه چه د ما نیړ په د یو الو نو کښې شـو ې د ی دا څر ګند یږي‌چه بیړی‌ـ دټو کر ـ ښکلیوشیانو ـ خاور ینو لوښو او دملګې د مجسمو شخه ډکې شوې وې . په سره بحیره کښې یون په خیر سر ه پا ی ته و ر سید او کله چه مصر یا ن خپـل مز لـه ته و ر سیـد ل نو یې د هغه ځا ی د ځا یی خلکو له خوا ډ ېر تو د هـر کلـی و شـو . دښـت خلك دنحسـې په لید لودومـره خـوش‌وولکـه نیکو نـه یـې چه دهانو په لیدلوخـوښ شـو ی وو . له د ې ځـا یـه بیاددوی دو ستانه منـا سبـا ت سـره ډینګ شـول اودمالـو نودوړ لـو پـه وخـت کښـې دښت خلکومصریانوسره دا لطف و کړ« چه هغوی خپلې بیړ ی‌ـ دښت د ځمکې د ډېروښو محصو لانـو شخـه ډ ر خولې ډ کې کړ ی »

پـه دې شیانو کښې نـه یوازې د « مر» و نې وې ـ چـه ملکه یې فوق العاده لیوا له وه ـ بلـکه « سپی سری بیز و ګانې ـ تاز یان ـ دېړ انګانو یو ډکی اودښت دهیواد ځایی خلك سره له خپلوما شو مانو» او په پای کښې « دجنوبی سیمویوژو ندی پړ انګ چه‌دعلیاحضرتی‌دپاره په جنو بی ملکو نو کښې نیول شوی و » هم پکښې وو.

کله چه ګرځندوی بیرته تیبس ته ورسیدل‌هلته فوق‌العاده خوښی جوړ ه شوه . ملـکې دو ې ور ځې ر خصتی‌اعلا ن کړ ه او ددې موقع

دتجليل په مناسبت يې جشن جوړ کړ.

نحسی پهډيرو يارسره پهخزانه بار بيړيو ته چه په خيريتسره بيرته بندرته رارسيدلی وې ځيرشولووې ويل : « دنړۍ پيدايښت نه تراوسه پورې هيڅ پاچا ته هم داسی څه نه دی راوړلشوی . » ملکې دخپلې ماڼۍ پهچوترو کښې د « مر » دخوشبويه ونود کښينولو نه وروسته وويل : « مـا د ده - ا مـا ن - د پاره دده د بڼ څخه پښت جوړ کړ . دادده دګرځيدادپاره با لکل بس دی . »

کله چه ملکې داويل دخوښۍ نه په جامو کښې نه ځائيده .

پهحقيقت کښې دا قول سياحت دړېړو نوڅخه جوړ بری و.

وروسته دهاتشپسوټ ددورې نه دمصر ورځ بدو شوه بی پا يانه اوخونړی جګړې پکښې روانی وې. مصريان یوازې دخپلو ګاونډيانو سره نه جنګيدل . بلکه په خپل منځ کښې يې هم سره اخو ډب و. په پای کښې کمزوری شوا وهغه برمچه دوی درلوده ولس په حيث لاره هغه يې با يلو د . مګرپو هنه يې له هرې لارې چـه وه دوروستيومد نيتو نو په دردولګيد ه اودغسی ترموز پورې هم راورسيده .



د وړ هم شپږ کی :

# دبلا مینـــه

دیونا نیا نود روایا توسره سم په ډیرو لرغونو مها لو نو کښې د« کریټ »
په جزیره کښې چه داژه ( Agean ) د بحیر ې په جنو بی پا ی کښې
پرته ده یو ډول تروونکی او خونړ ی مخلوق ژ وند کاو چه نیمه تنه یې
دغویی و ه او نیمه تنه یې دانسان . د ا مخلوق منا تور « Minotaur »
نومیده . د غه مخلو ق د کریټ د خلکو له خوا په یوه کاږ ه واږ ه ځای
کښې ر اګیر شو ی و . داځای دومره مغلق جو ړ و چه که به ا نسان
پکښې و ا چول شو او که ځناو ر بیا به یې خپله دو تلولا ر نه مو نده .
منا تو ر به همد ې ځا ی کښې دانسان په غوښو ژوند کـاو . ا ماداچه
منا تو ر له ارهـ څه شی و داخبر ه پوره موږ ته نه ده څر ګنده . مګر ددې
کاږ و ه اږ ځای یا د نوموړی مخلوق دتلاتو بی په باره کښې ډیر زیات
روا یات موجو ددی . داچه مناتورو جود هم لاره او که یه د ابله خبره
ده . خود ا پو ره راته څر ګنده ده چه هلته یو « کړ » موجودو .
په کنا سس « Cnossus » د کر یټ په شما لی سا حل کښې د یـو ه
لرغو نی ښار کنډ والې اوورا نې مانۍ چه کا ږ ه واږه سالو نو نه لر ی
پیدا شو ی دی دد غو کنډ وا او شخه څر ګند یږ ی چه کریټ دیو ه
ستر مدنیت مر کز و . مینا نیا نو « Minoans » د پرمختګه مینو مصریانو
شخه ډ یر ز یـات تو پیر لاره . دوی بیړ ی چلوو نکی او ګرځند و یان وو
ا و شتـه یـې هـم د سمنـد ر د سو د ا ګر ی د سرلـه بر کـته و .

له بده مرغه چه ددوی دسیاحتونو په برخه کښې زموږ معلومات ډېر کم دي.
اما سره له دې هم په دې پوهېږو چه په میله یږرا نه کښې سرتر سره
دوی بېړی چلولې دي .
ځکه چه ددوی دسوداګرۍ نښې د میله یږ انې شا وخوا ټولوسیمو
کښې پیدا شوی .
مینانیا نوهغو خلکوڅخه چه یې سوداګري ورسره کوله ډېر زیات
څه زده کړل او ډېر ژر داسې ماهر کسبګر هم شول لکه بېړی
چلوونکی چه وو .
رښتیا چه ددوی ښکلي کاشي لوښي اود ژېړو - سرو زرواو عاج
مرصع کاري دومره نفاست لري چه ساري یې نه لیدل کېږي .
مینانیا نوته د خپل ورځنی ژوند دمناظرو په وا سطه د خپلو دیوالونو
انځو ریز (نقشي) کول ډېر ښه ښکاري دل اود غه ډول انځو رونه
به یې پر ې کښل . موږ ته دغه روښانه انځو رونه ددوی د ژوند انه
د ډول اودې باره کښې چه څه شی د دوی زیات خوښېدل ډېر ښه
فکر راکولای شی . په دې برخه کښې کوم شی چه تر هرڅه نه
زیات دسړ ی فکر ځانته وربولي هغه د دوی عصریت دی .
ددوی ژوند د ۲۰۰۰ ق . م په شا وخوا کښې دی مګر سره له دې هم
تر هغو خلکو نه زیات عصری ښکاري چه یې دوه پېړ ی د مخه
هستوګنه لرله.

د وی د پلای مو ټهو (Plymouht Hoe ) ځنځه د‌وزیړ ګنل « نومی بیړ ی‌دروا نید ونه د مخه پ‌ه‌داسې کو ر ونو کښې ژ وند کا و چه په بخا ر تو د ید ل‌رو ا نې ا و به پکښې جا ری وې ا و سټو پـو نه ا یلیو یټرو نه ا و حما مو نه پکښې مو جو دوو .

په ا نګلستا ن کښې په ۱٦۲۰ ق.م کښې یعنی هغه کال چه‌د‌وزیړ ګل « امر یکې ته و خو ځید ه هیڅکله‌هم چا د ! یلیو یټرو نواو حما مو نو نوم‌نه‌و‌اور ید لی . دوی لا هم په سر او خو تنر و نواو نغر یو کښې پخلی کا واو او به‌یې له کو هی ځنځه اخستې .

په کو مو بیړ یو کښې چه بحر ی قدرت د کر یټ په‌لاس کښې و مانو ګا نو‌یې د‌میلو‌یټرانې ټوله دنیا کشف کړه . له‌بده مر غه د مینا نیا د ګیلی Gally ( یوډول ار‌غو نی‌جنګی بیړ ی‌ـدی ) هیڅ نښه‌هم کله‌نه‌ده پیدا‌شوې.مګر دار‌غو‌نو‌پیسواو‌مهرونو پر مخ‌یې انځورونه کښل‌شوی‌دی. دد ې ا نځورو نو له مخې موږ داو یلای شو چه د غه بیړ ی‌ـ یو ډول کوچنی‌ـ بیړ ی‌ـ وې‌چه‌یې‌یوازې یو بادوان لا ر ه . دابادوان یو ځلور ګوټه‌بادوان‌او‌دیو ې‌مخصوصې‌میلې«Yardarn»ځنځه‌چه‌دسینګاو‌نې‌دپاسه د قا ئمه زاو یې به تو ګه نصب شو ې وه را ځړ ید لی و. سینګا و نې د بیړ ی‌ـ په‌منځ کښې درول شوی و . دبادوان ځنځه یوازې هغه‌و خت کارا‌خستل کیدی شو چه باد به‌د شاد لوری ځنځه و . ځکه مینانیا نو‌هم دمصر یا نو په شیر دها بل ډول باد وا نو نو په جوړ و لو نه پو هېد ل اود بیړ یو کیلو نه یی هم ا بتدا یی.وو . کله به چه با د موا فق نه و

نو مینا نیسا نــو بــه « گیلی » د شپــو پــه زور روانولې . شپه کښې بهٔ بیړی مخې ته مخامخ کښیناستل او په هره بیړی کښې به له اسو څخه تر سلو پورې شپه کښو ځای لاره.

هغه شهٔچه مینانیا نو ددغو کو چنیو بیړیو پهٔواسطه سرتهٔرسولی ډیر دتوجه وړدی . دابیړی دسا حل دسا تو نکود کوچنیو بیړ یوڅخه ستري نهٔوې . د غه ډول مینا نیا نو قطب نما واتن ښودو نکی « Sextants » او لنــگرو نه هم نــه لرل . د وی د قطــب نمــا د نه لر لو له امله پــه هغه سمنــدر کښې چــه سرو بر یی نه ومعلو م . لری مزل نهٔشو کو لای . د وا تن سنجو و نکی دنه لر لو لهٔامله یی هغه وا تن نه شو اټکل کولای چه دوی بهٔوا هٔاوهم دلنگر دنهٔلر لو لهٔامله دوی مجبوررو چــه هر ه شپه خپلې بیړ ی سا حل ته و با سی . دا ښا یی مو ز تــه عجیبهٔو ښکاری چه ما نهودې هره شپه خپله بیړی ساحل ته وبا سی او هلتهٔدې توقفو کړی. مگرد مینا نیانو په برخه کښې داخبرهٔځه داریانتیا وړ نهٔده. ځکه حتی که هغوی لنگرو نهٔلرلی وای - بیاهم مجبو روو چهٔدیخلی اوخوب دپاره ځانو نه سا حل تهٔورسوی. و لی په هغی کوچنیو بیړ ی کښې چه ډوری« Dory » بلل کیدله پخلی نه شو کیدلا ی .
د غــه ډول پــه د ې کو چنو ټو بیړ یو کښی د سړی ډیرې وتلو او بیله یدلو د پاره هم ځای نهٔ و .

پرسیره پردې اوبهٔو اوغذاته همــ داسې لکه چه ننني بیړی دخوری

د برابرو لود پاره هڅه و ته وروز ی دوی ساحل ته رتل.

البته یوازې په دو مرهتو پیر چه عصری بخاری بحری بیړی دومره زیا توسیږ لیود پاره د میا شتې شوری هم برابر و لا ی او له ځان سره اخستلای شي. مگر مینا نیا نود شوری د ترته کولو د پاره ځای نه لاره.

د غه ډول هغوی داسی شوری هم نه لاره چه هغه دې تر ته کړی او ډیره زیاته موده دې یې وساتی. څلو یښت پیړی د مخه شته ړو نه ډیر زیات وو. مگر په سر تړ لو کو تیو کښې اچول شوې اویا په نورو شیانو کښې تړل شوې غذا درک نه لا ره. ما نو ګانو خپل ورځنی ضرور یات هره ورځ برابر ول.

البته په دې کښې څه شک نشته چه مینا نیا نو دانګرو ـ خرماوو ـ غوزانو اوغلې یوڅه شوری دځان سره اخستل او دغه ډول یې دسمندر د کبو نو ښکارهم کاوه. مگر دتازه سبو اود څکلوداو بو دبرابرولو دپاره مجبور و چه ساحل ته ولاړ شی. څر نګه چه بیړ ی د ډیر ې کو چنۍ وې نودهسی لیز بار دوړلودپاره باید ددوی ټولې کو چنۍ بیړ ی په کار لو یدلې وی.

خو په دې صورت کښې هم با ید سړ ی او مواد هسې ځښتو ځوندې سره سر په سر شو ی و ا ی.

کله که تاسود دیړی نقشې تـه ځیر شی،

نوبه‌و گوري چه میله یټرانه د ډېرو زیا تو لو بوا و کو چنیو ټاپو گانو شخه ړ که ده . که‌وغواړی چه د کر یټ شخه تر جبل‌ا لطا رق پوري په بېړی کښې ولاړشي‌ نو به هیڅ دا سې و ضعیت پیش نه شي چه ځمکه مو ترستر گو ا لو نیا شی .

په حقیقت کښې میناانیانوله دغو ټاپو گانوشخه دهلو وکا راخست .

دمیله یټرانې دا ممیزه دهغو ستر و ممیزا تو شخه و ه چه د بې وسیلې او یوازې کوچنیو بېړ یو خا وند انو مانو گا نو د پاره یې ډېر زیات ارزښت لا ره . دغه ډ و ل میله یټر ا نې نو ر ممیز ا ت هم لـر ل : مثلاً مله یټرانه‌یوه ارامه‌بحیره ده‌دالته تقریباً مدوجزرهیڅ نه پېښېږ ی او با د ونه‌یې هم نرم دی .

البته په مله یټرا نه کښې په تیره بیا په ژ می کښې طو فا نو نه هم شته او یو خو ا بل خو ا سر یع جر یا نو نه ا و گر د ا بو نه بیړ ی چلو لو ته مشکلا ت پید ا کو ی .

مگر په عمومی ډو ل سره میله یټر انه یوه په زړه پو ر ې او داعتماد و ړ بحیر ه ده . لنډه د ا چه مله یټر ا نه د بحیر ې شخه خلیج ته ز یا ته و ر ته د ه .

ا لبته دا چه د کریټ دغه ډ پرستر تمد ن څنگه پا ی‌ته ورسېد په دې موږ نه پو هېږو . دوی یو وخت دخپل ټاپو دسلطنت ترسیوری لاندې په امن ژوند کاو . امابله ورځ له‌منځه ولاړل . داخبره هم‌داریانتیاوړخبره ده چه په نژ د ې ۱٤۰۰ ق ٠ م کښې کر یټ څنگه یو ناڅا پـه گیرشـو

اود «اچین» دخطرنا کوبرکوچه په کلونو کلونوداسیا څخه دیونان دشبه جزیري خواته راشوي‌شوي و ي-تریرغل لاندي راغله .

داشمالي یر غل گرزت ځنګلیان‌وواو بس .

د کریت‌ښارونه‌لو ټ‌شول،قصرونه‌یې و سوځیدل او خلك یې ووژل شول. دمینا نیانو بیړ یو بیا په میله پټرانه کښې‌مزل و نه کړ.

د کریت اریانوونکی هنراوصنائع پای ته ورسیدل‌اودنړی په دغې سیمې کښې نه یوازې تجارت اوسیاحت بلکه خپله دتمدن کاروان رټ ځای پرځای ودریږ . خوهیڅ شی هم رټ له منځه نه ځي . مینا نیان له‌منځه ولاړل مګرنه سیاحت .

**تمدن اوسیاحت څه موده‌توقف کوي‌مګر مرګ نه لري.**



# چندن ـ سرو ـ اوخرازه شراب

وروسته د کريت دجزيري دخرابېدلو نه دميډيټرانې غني سوداګري دفنيقيانو لاس ته ورغله. فنيقيان دمصريانو اويونانيانو په اندازه متمدن نه وو. دوی د سامي پرګو څخه يوه پرګه وه چه دعبرانيانو ـ بابليانو اوددجلې اوفرات دسيند ونودنورو ـ ولسونوسره يې ډېر نژدې اړيکې لرل. هيواد يې يوه پټاره غوندې مځکه وه اود فلسطين تر ساحلـه پورې نژدې دوه سوه ميله اوږده پرته وه. نوم يې فنيقيه و. معنايې دخرماوو مځکه اودغرونودلړونو اوبحيرې تر منځه يوه حاشيه ده.

ترټولو نه مشهورغرونه يې دلبنان غرونه وو. دسرو ډېروسترو ونو چه ددې غرونه لمنو کښې شنې وې دفنيقيانو دبېړيودپاره الوارونه ورکول. دغه ډول دسليمان دمانۍ رستنې هم دهمدې لرګوڅخه جوړې دې. تاسوته به دانجيل دا کيسه څرګنده وي چه وايي:

« سليمان دفنيقيي له پاچايانو څخه يوه ته امر وکړ چه د لبنان څخه دسروې ونې راوو ړي . »

اوهرام « Hiram » د ټايرې « Tyre » پاچا داومنله .

هرام وويل : « ټولې غوښتنې به دې دسروې دالوارونو په برخه کښې

ترسره کړم نو کران به مې يې دلبنان څخه په بحيره کښې کښته‌راوړی اوزه به يې هم دبحيرې په واسطه هغه ځای‌ته‌درورسوم چه‌ته وايې : اوهم‌هلته به يې‌به کاروا چوم . »دې‌دجنګوزيواوسرو ودو نو په‌مقابل کښې سليما ن ـ فنيقيا نو ته دخوړ لو د پسار ه شل ز ر ه پيما نـې غنـم ور کړل . . . . اوسل زره پيمانې دجنګوزيوتيل . »

دفنيقيې داشکلن اوله خرماوونه ډك ساحل او غرونو دلړونوتر منځه ځمکه‌ډېره ښه زرخيزه اودکرهڼې دپاره ډېره ښه‌و ه . دغرونوراښکته امنې دانګورتا کونوڅخه ډکې‌وې او په وادې کښې بې غلمه ډېره ښه کېده . په ساحل کښې چـه بې شماره جزيرې پر ې را تا وشوي وې سرترسره کلي ود ان وو. له همد ې امله سېد ن « Sidon » او ټا يري ډېر زيا ت ا هميت لاره‌ا و په ۱۰۰۰ ق . م کښې دلو يې سودا ګري مر کز ونه و و .

فنيقيا نو دخپل تا ريخ په ټو لومها لو نو کښې ديو ډول کب‌څخه چه دمېلو يټرانې په سو ا حلو کښې يې ژوند کـاود ر نـګ جو ړ ولو چم زده کړ ی و.

دايو ډېر ښکلی تياره‌سور بخون‌ارغوا نی ر نـګ‌و . دار نـګ‌د ټايرين « Tyrian » ا رغوانی‌په‌نامه‌يادېد ه‌او د لر غونې‌نړۍ په خلکو کښې‌بې ډېرزيات ارز ښت لاره دد ې ر نـګ په جوړلو يوا ز ې خپله فنيقيا ن پوهېدل اودهمد ې په واسطه ډېرزيات شتمن شو ل .

ټاير ين ارغوانی يواز ې يو د هغو بې شما ر و ښکليو ا و ګټو رو

شیا نوشخه وچه فنیقیانو یې جوړول زده کړي دوا وپلورل یې په همدوی پورې منحصرو . دوی یا بتکاری قدرت نه لاره بلکه د پر عملي زیار کښ اوپا خه کسبګر ووچه تمل یې دنورو شخه ا فکار اخستل او خپرول یې کله به یې هغه افکار چه دنورو شخه یې اخستل کره کړل او کله به محض پری تېر شول او بس . په دې ترتیب دوی «د مدنیت استا ځی » شول مګر دوی پخپله بیا هم په ټول تاریخ کښې نیم مـدنی پاتې شول .

فینیقي ولس ډېر ې زیا تې بد ې خواوې هم ار لې .

دوی ظا لمان او بې رحمه خلك وو . ا ماد ګاونډ یا نو سر ه یې سلوك ښه و . په تېر ه بیا تر هر شه نه ددوی دا خبره دیا دونې وړ ده چه دهغوی د ځمکو د نیو لو هڅـه یې هېڅکلـه هـم نـه د ه کـړ ې . دوی دخپلې دفاع د پا ره په مر ګ جنګیـد لـې دی . مګر جګړ ه یې له اره نه وه خوښـه .

د فنیقیانو قوت له فتوحاتو شخه د سو داګرۍ له نظره ډېر زیا تو لنډ ه داچه دوی په رښتیا سر ه سو داګر وو . دوی خپل مالونه پـه ډېر ه ګرانه بیه پلو ر ل . مګر دخپلو مشتر یا نو د فرما یشو نو د تر سر ه کولو د پاره یې ډېر اوږ ده- اوږده مز لو نـه و هـل ا و هـر ډ ول ربړ و نه یې ګا لل . دوی ته «دڅېړ و لو ښو ـ او انسا نا نو څه تو پیر نه لاره».

سریان ـ لوښې پاپیروس ـ عنبر ـ خو رما و ې ـ وړې ـ غله ـ وریښم ـ سره زر غنم او ښیښې فنیقیا نو ته سر ه یوو و .

دا نجیل د روایت سره سم دوی « ولسې سو د اګر» وواو څر نګه چه

دمیله پترانې دنړۍ دملتو نو اموال تو ل په دوی پورې تړلی وو . نو یې
ددوی د کاروانو نو او« بېړ یو » سلا متیا غو ښتله .

د هر چا به چه سره جګړ ه - و ه د و ی به پکښې بیطر فه و و
چه سرد ې نه خوز یبږی داغ مه پر ې ز د ه !

له همد ې امله موږ وینو چه هرڅوك دفنیقیانو ملاتړ دی . حتی عبرا نی
پیغمبر ا نو هم - چه دو ی یې د و مره ښه نه ایسېد ل -ددوی په برخه
کښې عجیبې خبر ې کړ ی اوستا یلی یې د ی .

بیړ ۍ یې څه ډول وې ؟ په اومړ ی نظر کښې د مینا نیا نو بیړ یو ته
ډېر ې زیا تې ورته وې د هغوځېې لر ونکو بېړیو څخه چه دسر وې
دالوارو نوڅخه جوړ پېږی اودمعد نی قیر په واسطه یې چاو دو نه نیول
کېږ ې وړې و ې .

په تېر پړو د مهال سره فنیقیان دبیړ ۍ جوړ ولو ماهران شول او
د ۸۰۰ ق . م په شاوخوا کښې یې ترڅو او نه ښکلې او تیزې بېړۍ لرلې.
دا بیړ ۍ پیتې او پلنې نـه و ې بلکـه او ږ د ې او سـره ور غلـې
( تنګې) او د سمند رد یون دپا ره ډېرې ښې مسا عد ې و ې . یو څهار
کو نجه با دوا ن یې لاره چه د یوه سینګـاو ن څخه را ځړ ید لی و.
دا سینګاوڼ دبیړۍ په منځ کښې درول شوی اودوړ اندې اوورو سته نه په
پړ و تینګ تړل شوی و .

فنیقیا نو خپل بادوانو نه دور پښمینو او د کتان له تو کرانو څخه جوړول.
دا سې چه په روښانه رنګو نو به رنګ شوی وو د بېړیو سره به دا سره

شنه اوار غو ا نی‌ر نکه بادوانو نه ږ پر سبه ښکا ر ېدل .

فینیقیانو نه یواز ې داوږدو او تینګکو بېړ یو جوړول او د «کیلو نو» رو غول زده کړه، بلکه د انګرو نو داچو لو په چم هم و پو هېدل. ا ما ددو ی انګرو نه زموږ دننیو لګرو نو په څېر داو سپنې نه وو . بلکه یو ډول زی ور چه دږ برو څخه ډک شو ی وو.

د « کیل » په مختلګ او د انګر پیدا ېښت د سمند ر یون ته ډ یره زیا ته تر قی ور کړه مګر فنیقیا نو یواز ې په دې هم بسنه و نه کړه بلکه د عر شی‌بو ښل او د دا سی ستر و بیړیو جو ړو ل یې هم ز ده کړه چه دوه لړ ه څپې یې‌لرلې او دا ډول بیړ ی‌ـ با ی‌ر یمز « Biremes » بلل کېدلې اوهغه بیړی‌ـ چه در ې لړه څپې‌به یې لرلې د ټرای‌ریمز « Triremes» په نا مه بللې .

د غه ډول کوا ډ ر ی ر یمز « Quadriremes » او کو نکو ر یمز ( Quinquereremes)ته‌هم چه یی څلو راو پنځه لړه‌څپې لر لې‌ا شا ره شوې ده . مګر دا خبره هسې چټیا ت ښکاری.

ځکه په یو ه کو نکو ر یمز کښې څنګه کېـد ا ی‌شـی چـه د ې وروستی‌لړڅپې‌بې‌له‌دې څخه چه‌دوهم،درېیم، څلورم‌او پنځم لړ سره‌و نښلی په کاروا‌و ېېزی . یو سړ ی هېڅکله‌هم د ومر ه‌غټه‌څپه‌نه شی اد اره کو لای. ز مو ږ په فکر ښا یې‌چه کو نکور یمز دا سی یوه کوچنۍ بېړی‌ـ وه چه په هغې کښې پنځه لړه څپې نه و ې بلکه د هر ې څپې د پا ره پنځه تنه مقر ر وو.

فینقیا ن فوق‌ا لعا د ه عملی خلك وو ـ نو له همدې امله گومان نه

کېږ ی چه دې دو ی داسی بېړ ی ـ جوړې کړې وی چه هغه د ې گټورې

نه‌و ی او دا سی یو ډول بېړ ی ـ چه د ې در ې لړه څپه کښ و لر ی

وا قعاً با ید ډېر ې ز یا تې گټورې اوچټکې وی .





د ۶۰۰ ق .م په شا و خوا کښې د فینقیانو د غه ډول بېړ ی ـ نه یو ازې

د میډ یترا نې له یوه سره تر بل سره و لا ړ ې بلکه د جبل ا لطار ق

له ا بنا« د هر قل‌له مشهورو ستنو» څخه هم تېر ې شو ې او دا تلانتیك

« اتلس »بحر ته ورننو تې . داروپا غاړه یې و نیوه . د سسلی دجزائرو

څخه تېـرې شـوې اوان پـه انګلـستـا ن کښـی یـې انګروا چـاو .

د لته په کارنو ا ل« Cornwall » کښې یې ډ ېر زیا ت قلعی ومو ندل .

جنوب اومشرق ته یې دېښتې پر مخکه او مخ د سبا « Sqəqe » د ملکې

په قلمرو ور شوې کړې . له دې ځایه څخه یې کاروا نونو دعربستان

په بې پایا نه بېدیا او دهغو نا اشنا غرونو دپا سه لار و کړه چه دپارتیا

اوشمالی هند څخه تېرېږي .

کله به چه یې بېړ ی ـ به بندر کښې و درېدې او یا به یې کاروانو نو

توقف و کړ نو به هلته دسود اګری مرا کز ودان شول .

د ۶۰۰ ق .م په‌شا و خوا کښې له د غـو تجارتی مرا کـز و څخه

په مستعمراتو کښې ډېر ز یا ت‌منځ ته‌راغلل . خپله فنیقیه دیوې‌ډېرې

پرا خې او معمورې‌امپراتورۍ ـ مر کزو . له‌انګلستان څخه ترمصره ـ

له‌عر بستان څخه تر هسپانیا ـ له ایټا لیا څخه ترفارسه‌اوله شمالي‌افریقې

شخه تر توري بحيرې پورې دفنيقيانو سوداگرۍ چالانه وه .

دمخه تردې هېڅکله هم بشر دومره ستر ارادې او کټوري يون يافرق العاده سود نه و کړی .

فنيقيانو دخپلو دغو منافعو د حفظ دپاره دسوداگرۍ دلارو اسرار فقط له خپل ځان سره ټينګک ساتلي وو . يو لرغوني شعر دی چه وايي: « ته پوښتنه مه کوه زه به درته دروغ نه وايم. » مگر دفنيقيانو شخه پوښتنه هم نه کېده ـ خو دروغ بې ويل .

دا دهر چا ارزوده شو وپو هېبزی چه دارچيني له کوم ځايه راوړل کېږي فنيقي گرځند ويو به ويل چه: «ښه غوز ونيسئ درته به يې ووايو . » خو کومه کيسه چه دوی ويلې ده هغه داده :

دارچيني دډېرو غټوغټو مرغانو په ځالو کښې پيدا کېږی دغه مرغان چه دخپل غټوالی په اندازه خطرناك هم دي خپلی ځالې په ډېرو لوړو کمرونو کښې جوړ وی چه ديو ې خطرناکې بحيرې پرسوا حلو را سپاره دی . دې کمر ونو ته څوك نه شي ورختلای .

نو فنيقيان دار چيني په يوه چم ور شخه لاس ته راوړی. داسې چه مېږې اووزې قصابی کوی او دهغې کمر ونو په امن کښې يی د ريګك دپاسه ږدی . وروسته له هغه دوسلې سره په يوه ځای کښې ځانو رته غلی کوی . ستر مرغان پدې فکر چه سړی ولاړ را ښکته کېږی .

غوښې په منگولو کښې اخلی او بيرته خپلو ځالو ته وړ الوزی .مگر دغو ښو کترې دومره ستر ې وی چه مرغان دپور ته کېدلو په وخت

دپورته کیدلو په وخت کښې خپل توازن بایلی اوڅواله ځاله یې دهرڅه سره ښکته را اوبېزی . دلتـه دوی « فنیقیان » پـه غال مغال له خپلو مرچاونو شخه راوزي اودمرغانوسره ددارچینی دلاس ته راوړلو دپاره په جګړه پیل کوی .

البته سو به تل دفنیقیانو په برخه ده . ځکه مرغان- ولو که هرڅومره مهیب هم وی- دهغوخلکو دپاره څه شی نه دی چه هره ورځ به دبې سره دیوانو او هغو خلکو سره مخامخ کېدل چه دړ جن درجن و سلې ورسره وې .

بحری بلاوې خولاشه کوې چه هره یېزه به یې یوه مهږۍ وه .

کله به چه د کیسوځای راغی فنیقیانو هېڅچاته هم تن نه ور کاو .

مګر ددوی دخپلې سوداګرۍ درازونودساتلوچم شه داسې، نه وچه یوازې دبحری دیوانواو بلاووپه کیسودې شروع اوختم شی. بلکه دوی دخپل رقیب دغولولودپاره هرې وسیلې ته متوسل کېدل . یوځل یو ې بېړۍ سره له خپل قیمتی باره ( عاج - بیزو- طاوس-سندل-سروه -او سپین خوازه شراب ) - تردې شخه چه د کانال څرنګوالی د ې هغې بېړۍ ته وروښيی چه ورپسې راروانه وه - دې ته ترجیح ور کړه چه ځان په خټه کښې بند کړ ی .

اوس نو که داڅولې خبرې په نظر کښې و نیسو نو دا باید بیاڅه عجیبه را ته ونه برېښي چه فنیقیانود خپلو یو نو نو هېڅ اثارنه دی پرې ایښی .

تر کومځایه پورې چه موږددوی په باره کښې معلومات لرودا خبره هم

شه داریانتیاوړنه ده چه دوی حتی دخپل ډېر ستر بحر ی یو ن د کیسو دویلو څخه هم ځان ژغورلی دی ·

دایون نبزدی د ٦٠٠ ق ۰ م په شاو خوا کښې شو ی دی · د ا یو ن یوډېرزیات اوږدیون و · هردوت یونانی ستر مؤر خ چه خپل تاریخ یې ددغه یون دوقوع څخه شه موده وروسته لیکلی دی وایی چه دې یون درې کاله وخت ونیو · اما داهم شه دتعجب خبر ه نه ده ځکه په یوه کوچنی بیړۍ کښې د ا فر یقی ګر د چا پېره را ګرځېدل باید هر و مر و ډېر وخت ونیسی اودا کا ر په رښتیا سره هم فنیقیانو په همدې تر تیب کړ ی دی·

کو مه کیسه چه هردو ت په خپل تاریخ کښې کښلې هغه داسې ده:

« څر نګه چه مو ږ ته څر ګنده ده لیبیا-افر یقا - پر ته له هغې برخې چه داسیا سره نښتې ده له هرې خواد بحر په وا سطه ا حا طه شوې ده دا کشف دلو مړ ی ځل دپا ره دمصر پاچا نیخو و کړ .... چه یو شمېر بیړ ۍ یې دفنیقیا نو پـه سپرلۍ سمندرتـه وغور ځولې اوورتـه یې ا مر وکړ چـه د هرقل ستو نوتـه ځا ن و رسوی اوبیـا دهمـدې میله یې ا نې له لارې مصر ته بېر ته راو ګرځی ·

فنیقیان دمصر څخه د ا یر ی تر ینز ( Erythrvaean ) د بحیر ې ( ننۍ سر ې بحیرې ) دلارې نه وخو ځېد ل او همـد ا سې یې خپلې بېړۍ جنو بی سمند رتـه ور داخلې کړې · کـله چـه منی را غی ځا نو نه یې-په کوم ځای کښې چه یې کولا ی شو-سا حل ته کړ ل · په یوه ټو ټه ځمکه کښې یې غله و کر له ا وتر هغو ور ته تا ل شول

ترخو چه‌د لوشوه . غله يې ور پېله او بيا يې په‌يون پيل وکړ . په‌دې ترتيب پو ره‌دوه کاله‌تېر شول .

دريم کال لا نه‌وراوسېدلی چه‌دهر قل له ستنوڅخه تېرشول او په‌پوره سلامتی‌بېر ته مخ په کور رهی شول . دوی د بېرته راتګ‌پسره اعلام وکړچه د ليبيا څخه په‌چاپېره‌يون کښې يې لمرښی‌ خواته و ـ البته زه خپله داخبره هيڅکله هم نه منم او بل څوك به هم دمنلو سر ورته‌ونه خوځوی ـ په‌دې ترتيب دلو مړی ځل دپاره دليبيا پر اختياخر ګند ه کړ ل شو ه . »

هرد وت چه په دې کيسه کښې‌دلمر په باره کښې دفنيقيانو خبره نه منی‌حق په جانب دی . ځکه دی دا ستواد کر ښې څخه نا خبره دی .

په شمالی نيمه کره کښې لمر تل د جنوب خوا ته وی . مګر په جنوبی نيمه کر ه کښې تل د شمال‌خو اته‌وی . نو له همدې‌امله کله‌چه‌د فنيقيا نو‌يون‌داستوا د کرښې‌نه ښکته دا ميدرأس نه چاپېره برخه کښې شوی‌ـ غر مه‌مهال يې لمر کيڼې‌خوايعنی دشمال لو رته‌و . مشا هد ه يقين دی .

هر دوت يعنی هغه څوك چه پخپله معتقدوچه لمرد کبلهی « کاغذپران » په‌څېر با داسمان‌ته ورالوزولی دی . دفنيقيا نويا په بل عبارت‌دمصريانو دکيسې په باره کښې په‌شك کښې و . ځکه‌دا کيسه مصريانو کړې ده نه‌فنيقا نو .

البته داچه فنيقيانو دا کار کړی دی او که‌يه ؟ په‌دې‌باره کښې‌موږ

په یقین سر ەخه نه شوو یلای . اما کوم شی چه باید وو یل شی هغه دادی چه دغه ډول یو سیاحت ممکن و .

هغو خلکو ته چه داتلانتیک طوفانونه اودسرې بحیرې اهاړونه یې زغمل هغوی ته د افریقا ګرد چاپېره له شرقه تر غربه پوري یون څه مشکل نه و .

په ساحل کښې یې ازدحام نه شته . بادونه اوڅپې په زړه پوري دي . تا زه او به اوغوښې په اسانه اوو فرت سره موندل کېږي .

دا سفرا لبته ډېرا وږد او ګران و، مګرداسې زړورو او ماجراجوخلکو دپاره لکه فنیقیان نا ممکن نه دی .

البته موږدې خبرې ته دشك په سترګه کتلای شو چه وشه دوی دې دسمندر دبلاوو او دېوانو سره مخامخ شوی وی . مګر په دې پوره باور لرو چه دافریقا ګردچاپېر په بېړیو کښې را تاو شوی دی .



# دهرقل دستنو نه هاخوا

شوسوه کاله وروسته له دي چه د« نیخو » پاچاد وخت فنیقیان دافریقې نه چاپېر په بېړۍ کښې ر او ګرځېدل ـ یوه کارتا ژ ی « Carthage » هیأت دهانو« Honno » په مشرۍ ددغې وچې دغربی سا حل یوه ستره برخه کشف کړ ه .

کارتاژد « ټایری » دمستعمرچیانوله خوا په نژدې ۸۰۰ ق ۰ م کښې ودان شوی و ۰ د ۵۰۰ ق ۰ م په شاوخوا کښې ترسیدا«Sipou»او« ټایری» هریوه نه کا ملاً بېرلوی او معمورښارو .ځرنګه چه د افریقاد شمالی ساحل داوږدو په نیمایی کښې واقع و ـ نو یې دمیلهیترانې په سیمو کښې ډېرښه موقف لاره اودیوه مترقی تجارت مرکزو.

کارتاژیان هم دخپلو تېرو پلرونو« فنیقیانو» په څیرسوداګراو بېړۍ چلوونکی وو او ځرنګه چه یې هېواد ـ ددولت ا و وسعت له مخې سترشو نو یې پخپله خپل ځا نته دسوداګرۍ د مستعمرو په پیدا کولو کوتې پورې کړ ې.

له د ې لارې نه دوی سره یوازې دا امید نه و ـ چه خپل تجارت ته وسعت ور کړ ی بلکه داهم وه ځو یو نانیان ـ چه دمیلهیترانې په غربی سیمو کښې یې تجارت لاره او په تېربد ودمهال یې هلته لو یې لو یې معاملې نښلو لې وې ـ

سره تېر کړي . نوله دې امله د کار تاژ حکمرانانو فیصله وکړه چه د اروپا او افریقا په غربي سواحلو کښې- هلته چه هومره لري هېڅ یوناني هم دور تګ زړه نه وکړي - تجارتي هډې ومومي .

ددې دپاره دوه لېږ دېدونکي هیأ تونه تیار شول او په نژدې ۵۷۰ ق . م کښې یې بېړۍ وخوځولې . یو مخ په شمال و خوځېد او بل مخ په جنوب شمالي هیأت دناکامۍ سره مخامخ شو . اما جنوبي رټ بریالی شو.

همدا لېږ دېدونکی هیأ تونه وو چه مشر یې «هانو» و .

دیوه «کارتاژي» دپاره «هانو» یو عجیب انسان ؤ . کله چه دی د خپل سمندريز یون څخه بېر ته راغی نو یې د خپلوا کتشافاتو کیسه دیوې شاځې ( ډبرینه اوحه یا پلنه ډبره) پر مخ و لیکله او په یوه مانۍ کښې یې کښېښوده . اما موږ ته نه اصلي شاخه په ګوتو راغلې ده او نه مانۍ پاتې ده . بلکه فقط ددغه ډبر لیک یوه یوناني ترجمه ترموږ پورې را رسېدلې ده . ځینې مؤرخین ددې اسنادو په بر خه کښې متردد -دی اما ځینې نور یې درست ګڼي او موږ ته هم د همدې اسنادو له مخې څرګنده شوه چه د «هانو» لېږ دېدونکی هیأت دشپېتو بېړیو او شو زره نفرو څخه جوړ ؤ . دا یو ډېر ستر عزم ؤ چه هم یې جرئت غوښته او هم مهارت، او ها نو دوا ړه په یوه اندازه لرل .

د هانو تر مشرۍ لاندې کارتاژیان د «هرقل له ستنو» څخه تېر او د مراکش د ساحل په اوږدو شول. کله به چه دا سې یوه مناسب ځای ته ور سېدل چه هلته بایدمستعمرې جوړې کړي نو به دوه، درې بېړۍ

دهیأت څخه پاتې شوې اود ځمکوا وعمارتو نو په ودانو او بهيې کوتې
پورې کړې نورو بېړيو بههمدا سې خپل یو ن تهدوام ور کړ . کله چه
پاتې و اره بېړۍ د تنسفت « Tensift » د سیند د خولې او یو جلکوته
ورور سېدې هلته زښته زیاتې بېړۍ دهمدې مطلب دپاره پاتې شوې.
دلته شاوخو اقوله وحشي پيلا نو نیو لې وه . مگر ځا یې پر گې د پر ې
صمیمي بر پښېدې او دتجار تچانسو نه پرزیات وو . د لته متعد دې
تجارتی هٔې جوړې شوې او دهیأت پاتې برخه په پای کښې ده را « Draa »
سیند ته ورسېده . دهراد سیندنه هاخوا دوچې بیدیاشگه ښکته بحیرې ته
ور ښو یېد لې وه .

کارتاژیانو بهورځوورځو بېړۍ وچلولې ترڅو لهدې پهبدله ساحل څخه
تېرشولا و پهپا ی کښې دهرنی « Herne» په جزیره کښې ښکته شول .
د لته دو ی هغه ځا ی ته ور ور سېد ل چه خپله ترڅولونه ورو ستۍ
مستعمره یې کړه. لهدې ځای نه هاخوا زیاتی افریقا فقط یو ه خپکۍ شوه
دا داسې ؤلکه دفنیقیانو خپلې موهو مې کیسې چهرښتیا شوې وې.
د سینیگل « Senegal »دسیند پهخوله کښې هانو دبدوا وخطرنا کو
پر گود خطر سره مخا مخ شو . دی وایي چه ترهغو پو رې مخ پورته
په سیند کښې ر و ا ن وتر څو چه سیند په یوه جهیل ختم شو . دد ې
جهیل نه گرد چاپېره غرونه را گرځېدلي وو اود هانو دقول سره سم« دداسی
خلکو تاتو بی وچه دوحشي ځناورو پوټکې یې اغوستي وو او موږ یې پهډبرو

ویشتلو. ویې شړلو او وچې ته یې پرېښودو » وروسته له څو ورځو یو بل
سیند ته ور ورسېدل. دلته ځنګلي خلکو ژوند نه کاوه- خو نهنګان
او داوبو اسونه زیات وو او ساحل ته نژدې یې په اوبو کښې غوټې وهلې.

دلته دوی ځینې توربو ستان لومړني زنګیان چه دوی ته په ژوند
کښې ور تر سترګو شول هم ولیدل. خو کله چه یې په دوی « کارتاژیانو»
سترګې ولګېدې زنګیان وتښتېدل. هانو فیصله وکړه چه باید بیرته «هرنی» ته
وروګرځي او وروسته د څوری له برابرولو څخه بیرته دافریقې د سواحلو
په پلټلو پسې ور ووت. دا پلادی ان د بسا ګوس خلیج ته ورورسېد.
دلته د یوې بلې جزیرې د پاسه د خپلو ملګرو سره په دې فکر پیاده شو
چه خپله وروستنۍ مستعمره ودانه کړي. مګر وروسته له څلیرویشت
ګړیو څخه یې دا خیال له دماغ څخه ووت. نیمه شپه کله چه دوی
تولهٔ چه یوه سره لمبه ولیده نو ووېرېدل. دا داسې وو لکه چه خدایانو
یو فوق العاده زورور اور لګولی وی. ددوګونو د څوړو سکوا او سرو امبو په
منځ کښې د ډولونو غږونه اوریدل کېدل. دې وو د هانو د افرادو عقل له سره
والوزاوه. ځکه دوی هېڅ کله هم د ځنګله اور نه و لیدلی او د بومیانو ډولونه یې
هېڅ کله هم نه وو اوریدلی. د سپېده داغ سره سم یې بېړۍ
روانې کړې او پر شکرونه یې ایستل چه بېرته خپلو بیړیو کښې
کښېناستل. مګر د هغو اورونو بېره چه په وچه کښې یې لمبې وهلې
لا ورسره وه.

هانو وایي: «په چټکۍ سره مو بېړۍ د هغې وچې څخه چه په بوی او

او ر کښتي سو ځیده اود اور لمبې یې په بحیره کښتي لو ید اېړو ي
رواني کړي . په ملك کښتي دو ېر حرار ت له لا سه عبور ناممکنه و.
ځر نکه چه ډېر زیاتو بهر ید لو نو مو بېړی په ډېر سر عت بیولي .
مګرورو سته له څلورو ور ځو مز له څخه مو بیا هم د شپې کتل چه
ملك یوه لمبه ده . داور په منځ کښتي تر نور واور و نو څخه زورور او یو داسې
سخت اور لګید لی و چه لمبې یې اسمان ته ختلې .

کله چه ور ځ شوه. موږ وپوهېدو چه دا یوه ستره غو نډ یږوه چه
دخدایا نو ګا ډ ی نو مېد له » .

هانو نور هم پسی خپل مز له ته داور دساحل په غاړه ډ یري و رځې
دوام ور کړ تر څو چه جنو بی ها ر ن « Horn » تـه چـه مو ږ یې
د کیپ و ړ د « Cape Verde » په نا مـه یېژ نو و ر و ر سیـد ه ا و
پرو چه باند ې د کو زید لو څخه ډیرزیات په و یره کښتې وو .

هانو خپلو بیړیو ته امرو کړ چه کو مې بلې جزیرې ته ځان وروړسوی
اوداپه دې ا مید چه که یوڅه ارام او ز یات مورد ضرورت څه یې کو تو ته
ور شي . مګر کار تاژیان بیاد نا مېدی په ډ نه کښتي ډوب شول. ځکه
چه جز یره د یوه ډېر عجیب اونارا مه نژادڅا ڼو بی و.

دها نوډ قول سره سم د لته په د ي جزیره کښې کو چنی له ویښتا نو ډك
خلك و وچه زیات شم پر یې ښځې وې او یو ډول عجیب او غر یب او ازونه یې
له خو لو څخه ا یستل.د ها نو افراد یې د ځینو ښځو په نیو لو بریالی
شول. مګر نا ر ینه یې وتښتید ل .

اسیران ر ټ شیروو نکی وو . خو لې یې ا چو لې . ښېږ ې یې لـګولې او دخپلو نیوونکو سره دتګ څخه یې رټ ځان ژ غوره . کار تاژیانو بله چاره و نه لیده پرته له دې چه یې دغه اسیران مړه کړ ل او پوټکی یې د غنیمت په تو ګه ورسره یووړل .

څرنګه چه تاسوهم پوهېږئ دغه کوچنی تو ر بخو ن اوله ویښتا نو ډک مخلوق هیڅکله هم انسان نه بلکه یوډول بیز و ګا ڼې وې .

سبایی چه کټ مټ همداشمپانزه وې . په هرصورت هرڅه چه ووهغه به وو مګر دایو حقیقت دی چه همدغه وروستنی تصا د ف و .

هانو او دده ګرځنـد وی ملـګری داو بر داسو نو دسینیګال دسیند دخطر نا کو پر ګو - نهنګانو - سوځنده مځکې - دنغارو او دځورې دلبزوالی له امله رټ ستړی او بیرته مخ په کوروررهی شول .

دایو ډیر مهم سمند ریز یو ن و . دوی تردې زره میلونه زیات سفر وکړاو داستو اد کړښې ترلسو درجو پورې وررور سېدل . ډېرې زیا تې مستعمرې یې بنا کړې اودخپل وخت په جغرافیایی معلوماتو کښې یې پوره زیاتوالی راوست . متأسفا نه چه له دې معلو ماتو څخه هېڅ هم څه ګټه وانه خسته . دامقدره وه چه دپیر یو دپاره دې هانو هغه وروستنی ګرځندوی وی چه دې یې د ومره اوږ ده مز له ته ملا تړلې و ی .

ګوم مهال چه نورو ګر ځند ویانو خپلې بېړۍ د کیپ ورډ څخه چاپیر راو ګرځو لې یو زر کاله دمخه تردې و .

کله چه وخت راغی مانو ګانو قطب نماوې - فاصله سنجونه اوداسې بېړۍ

ولرلې چه يې متعد دبا دوانونه ارل . هانواوافرادو سره يې د لا ر ې پيدا کولواو بيړي چلولو دپاره يوازې امراوستوري اوددوی ذاتي ذکاوت ملګري وو .

کارتاژيانوددې اوږده يون په واسطه ـ که څه هم چه ځنګلونو ـ اورونو او بو مې ډ ولونوشخه وډا رشول ـ دا ثابته کړه چه دو ی د خپلوفنيقي نيکو نورښتينې زامن دي . ځکه کله به چه خبره د سمندرشوه دوی دهر هغه چاپه اند ازه غښتلي او زړورووچه يې کله بيړ ي چلولې وې .

دهانوپه سيا حت پسې بيړيو کښتې د کارتاژ اوفنيقيې قوت ته يونان چلنجور کړ اوپه پای کښې دروميا نوپه واسطه له منځه ولاړل . مګر په لرغونې نړۍ کښې هيڅ ولس هم تر دوی شخه ستر مانوګان پيدا نه کړل .

ډ ير لږ خلك تر دې شخه د زړور و ګر ځندويولا پې وهلی شی . دعبر ی استاځو په څېر فنيقيا نو هم ددوی د ځينو افعا لوله مخې انتقاد کولای شو ، مګر بايد « دوولسی سودا ګرو » اوهغو خلکوپه حيث چه « ډ ير زوړورمانوګان وو » ددوی د ستاينې سند رې وغږ وو .



# نوري دنیولو دنیاوې نه دي پاتې

هغه ډیر ستر ګرځند وی چه په دوهمه مرحله کښې ئې ګرته راکښه شول یونانیانو وچه هیواد یې په څلورمه او پنځمه قبل المیلاد پیړۍ کښې دزوراو قوت معراج ته رسیدلی و . دیونانیانو یا هغو خلکو نیکونه چه موږ یې دیونانیانو په نامه پیژنو له اره د کسپین دبحیرې دشا وخوا سیمو څخه راغلي دي . دوی له اره شپانه وو چه وروسته د پیړیو سرګردانۍ څخه خپلو رمو ته د تازه ورشوګانو د موندلو په هڅه د اسیا څخه اروپا ته وروا وښتل . په پای کښې دیونان شبه جزیرې ته ورننوتل او د ۱۰۰۰ ق ۰ م په شاوخوا کښې یې د « اژه » ټوله نړۍ تر پښو لاندې کړه او دمینا نیانو حکومت ته یې خاتمه ورکړه ۰

موږ ته شپانه په سوله مین او زړه سواندي ښکاري . مګر له بده مرغه چه د«اچین»شپانه پر ټوله هغو شپنو څخه دي چه د کیسو په کتابونو کښې راغلي دي . دوی هیڅ دائمي ټاټوبی ، هیڅ قوانین او هیڅ دعدالت یا ترحم حس نه لاره . په ډیر زیات حرص سره یې ځنګونه او مرګونه وکړل او چپاوونه یې خښ کړل . مګر زمانه د تحول دپاره عجیب عامل دی . په تیره بیا د هغو ځنګلیانو د عادت دپاره چه یې د ټاټوبی هوا په زړه پوري او ځمکه یې ډیره صالحه وه .

کله چه اچینیان دا ژې دنړۍ وا کدارا نشول نو یې وغوښتل چه

« دې‌شین»شی دا یې و کړه‌اوده‌رې ز یا تې مدنی‌لارې یې پرانستې، ډېر مترقی‌شول.تر شپږ سوه کلونو نه په لږ موده کښې‌یې سترمدنیت جوړ کړ .

کله که‌تاسې‌دیو نان‌نقشې‌ته ځیرشیءنو به و ګوریء چه‌د بحیرې او به شوشو ځایه ور ننوتې‌دی اوهره خوایې دغرونولړونه‌خواره‌دی .

دې‌دغرونولړونو دلومړی سرنه دوچې‌مزل ګران کړی‌دی. نوله‌دې امله ارغونی یو نا نیان لکه دوروسته و ختونو و کنګان «Vikings» سمند رته‌ور ننوتل . دوی ډېرښه ما نو ګان اود نووتولو مانو ګا نو په ځیر غښتلی اوزړور شول . دیـونان د شبه جزیرې دغرونـو لړونـو او کندو کې‌پرساحل‌هم دخلکو پرڅوند ډېره‌ز یا تـه اغیزه‌لرله او دهیواد دبیلو بیلو برخودخلکو تر منځه لیدنه کتنه یې‌ډېره ګرانه کړې وه . همداو چه‌په وادی ګانو سوا حلو اوداڅه‌د سمندر په نورو جز یرو کښې که‌چنی کوچنی سلطنتونه‌جوړشول اوددوی‌په‌تاریخ کښې وروسته‌ددې سلطنتو نوتر جوړیدلو څخه بیا هیڅکله هم یووا لی منځ ته را نه غی.

په لومړی سر کښې د غـه ښار ی دولتو نـه « City-States » پاچا اداره کول . مګرورو سته ډېرزیات له د غو دولتو نو څخه د مقتد رو اشرافوله‌خوا اداره کېدل . امابه تېر بدو دمهال‌یو نانیان‌به‌دې‌فکرشول‌چه هیڅکله‌هم‌بایدفر دمطلقه‌قدرت‌و نه‌لری. دوی ته‌دااحساس‌پیداشو‌چه ټول‌ازاد خلک‌باید په حکومت کې‌درای‌داظهارحق‌ولری اودهغه قانون‌په جوړولو کښې‌مسئول‌وی‌چه‌دوی‌دهغه په‌اساس‌ژوند‌کوی.

اومړنی « ښاري دولت » چـه یی دغـه ډول یـوحکومت جوړکړ
هغه اتن « Athens » د ی .

ورو ورو نور هم په دې پسی ولاړ ل. مګراتن دتل دپاره د یو نا ن په
د یمو کراسی دو لتو نو کښې یو ډېرستردو لت پا تې شو.

**« زموږ تشکیل تهدموکراسی ویل کیږی ځکه چه قدرت یوازی دځو کسو په لاس کښې نه دی بلکه دټولو خلکو په لاس کښې دی ... زموږ قانون ته ټول خلك سره برابر دی »**

پور تهخبری داتن دډېر ستر سیا ستمدار پر کلس « Pericles » خبرې
دي نه دا چه د «واشنګټن» یا «جیفر سن» .

داخبرې دوه زره کاله د مخه تردي چه د ی « کو لمبس » داتلانتیك څخه
تېر شي - یو نانیا نو کړې دي.

دديمو کراسی فکر هم دديمو کراسی دلفظ په څېر امریکایی یا انګلیسی
نه دی بلکه له اره یو نانی دی

یو نا نیانوهم د یوه ولس په حیث دښکلا سر ه ډ یر ه زیا ته مینه لرله .
دوی یو هی ته په ډیره در نه ستر ګه کتل او حقیقت تهسخت تږی وو چه پهمرور
دز ما ن داز موږ د ورا ثت یوه بر خه شوه .

موږ نه یوازې دديمو کراسی دفکر په بر خه کښې دیو نانیانو مر هون یو
بلکه نور ډېرزیات احسا نو نه یې هم را با ندې دي. موږ دد و ی دهغه نوی
او مهیج ر نګ هم مر هو ن یو چه یې معماری- مجسمه - سازی- نقا شی
مو سیقی- ډرا م ا و فلسفې ته ور کړ .

ننني نړۍ تهنهد هغو میړو نو چه یې د یو نا ن په طلایی عصر کښې

تفکر کړی‌دی لیکنی‌یې کښلی اوعمارتونه‌یې‌ودان کړی‌دی - شه‌شرك لکښېږی اونه د سترو فلاسفه وواو یاکوم ستر ډرامه لیکونکی پته شکاری .

دامهال که‌څه‌هم چه لرغونو یونانیانو کښې قوی ساینس پوهان - فیلسوفان - هنرمدان - لائق کاسبان - تکړه‌جگړن‌اوزړه ور مانو ګان پیدا شوی وو - مګر ستر سیاستمدا ران‌یې‌یو ازې څو تنه وو .

البته ځینې استثنا ات پکښې وو لکه « پرکلس » مګر په عمومی ډول سره یونانیانو ډیرکم‌سیاسی‌شعور اومهارت‌لاره . بیلو بیلو ښاری دولتونو دیو بل سره ډیرسخت‌ځیل‌لاره اوبی پایا نه جګړې یې ترمنځه روانې وې . حتی کله‌به که‌له کوم مشترك دښمن سره مخامخ شول ، بیابه یې هم سره جګړې‌اواخوډبړ اوخپل وخت او قوت‌به‌یې ددښمن په‌بدل خپل منځ کښې دیوبل سره په مخالفت بایلود . د لرغونی یونان ډیر ستر دښمن پارس وچه په‌څلورمه قبل المیلاد پیړی کښې د نړی د مخ ترټولو نه غښتلی دولت و . پارسیانو د دجلې اوفرات دناوو خلکو سره جګړه وکړه او واړو ته‌یی مانه ورکړه .

دمصرد فرغونا نوقوی‌سلطنت یې‌له منځه یو وړ اوحتی پرفنیقیا نویی هم جزیه کېښو دله . په ٤٩٢ ق . م کښې یې مخ په « هلسپو نټ » « Hellespont » ور نوره او په یونان یې جګړه ورخنبه کړه .

دپارسیانوجنګونه پنځلس کاله‌اوږده شول سختې‌جګړې وشوې . مګردیونان ښاری دولتو نوداتې په‌مشرۍ یوتړون‌سره‌وکړ چه‌د کافی

اوزدې مودې دپا رهدپار سیانودحملودپېر تهوهلو دپاره په سیند اووچه کښې متحد سر ه پا تې شول .

یونا نی دو لتونودومر هسیاسی شعور هم نه لا ره چه و ر و سته د پا رسیا نو د جګړ ې دسو بې شخه داتحاد او روغې ژوند و کړی . بلکه شنګه چه خطر تیر شو سپارته او ا تن بیـا سره په جګړه شول او ور پسې ژ ر په ټول یونا ن کښې دداخلی جګړ ې ا ور بل شو .

یونا نی ښاری دو لتونه چه دپارسیانو جګړو ورته کمزوری کړ ی و و لا هم پسې کمز و ر ی شول او په پای کښې دې حدته ورسېدل چه ز یا تی نودپل دښمن مخې ته نه شود ر پدلا ی .

ددوی نو ی دښمن فلپ « Philip » دمقد ونیې پاچا و . دمقد ونیې خلکو دیو نان دشبه جزیر ې په شما لی بر خه کښې هستو ګنه ارله . د و ی دیو نا نیا نو تر بر و نو په ښېر متمدن نه وو . مګر شنګلیان هم نه وو .

پاچا یې « فلپ » یوډ پیروتلی سړی و . په عسکر ی ا و سیا ست کښې ډېر زیا ت تکړ ه و . دهدیو نان دثقافت ډېره زیاته لما نځنه کو له . مګر یو نانی سیا ست ته یې سپک کتل . دهته په مدلل ډول سره دا ښر ګند ه شوې وه چه یو نانیان خپله خپل ځانو نه ـ نه شی اداره کولای .همداوچه ورسره په جګړه شو . یو نان یې و نیو او په خپل قلمرو کښې یې داخل کړ .

اماو ر و سته له شو کلو نو نه ښایسته ځو ا ن وچه و وژل شو .

وروسته له ده شخه یې واسن کلن ځوان زوی دده ځای و نیو خو ز و نې یې هم

خوا نیمر کې شو . اما ده خوا نیمر کې وروسته د ټولې نړۍ
له نیو لوشخه‌وه .

دده دا زوی سترسکندر و . سکندر عجیب کړ خنډوی اوعسکرو.
ده‌یوه پلا له دې غمه وژړل چه ګوندې نورې داسې ځمکې به‌نه‌وی پاتې چه
دی دې یې ونیسی .

دسکندر په‌باره کښې یوه کیسه ده‌چه دا کیسه موږ ته دده‌ځړ نګوالی
په باره کښې ډیر ښه فکررا کوی .

کله چه‌دی لا کوچنی‌هلك‌و. یووحشی‌اس یې کورنی کړ. ددې اس‌نوم
بیوس‌فالس ( Bucephalus ) او ډیرز براس و.

دا اس دتریس ( Thrace ) شخه‌دفلپ‌پاچا کمند ته‌راوستل‌شوی و .
له بده‌مرغه څومره چه بیوس فالس ښکلی و، هومره‌بې‌جلوه‌و.
او کله چه دشاهی کمند شخه دفلپ د کتنې دپاره‌راوستل شو شیشنېده
او میل میل کېده .غورځنګونه یې کولا وهېڅوك یې هم‌دې ته نه
پرېښو ده‌چه‌ور باندې سپور شی.

فلپ مېترانوته وویل : « دااس خوشی ، شی دی ولیء یی ! »
سکندر-چه دې‌خبرې ته سخت‌خیرو-خپل‌سر یی‌وښو راواووې ویل:
«څو مره یو فوق العاده اس یې‌دبې‌زړه تو ب له امله دلاسه ور کړ . »
څر نګه چه دده‌تبصرې ته‌هېچاهم شه توجه ونه کړه نو یې خپله
خبره بیا تکرار کړه ـ مګر بیاهم چا وانه وړ ېده .

سکندر يعنې هغه څوك چه يې دصبر طاقت نه لاره په قهر شو . د ده
مستاس خوښ واو مېشران يې فکر ته شودگان و رغلل .

غبز يې کړاو به او چت اوازيې وو يل :

«څه يو فوق العاده اس يې دېې زړه تو ب له امله دلاسه ور کړه»

دا ځل يې د پلار پر ې ور فکر شواو ور څخه يې يو شتنه و کړه .
«ايا ژاد ر سته ده چه ته د ې تر ځا ن څخه مشران و غند ې او داسې
چم دې و کړې لکه چه ته تر هغوښه يو هېږ ې او دا س به اداره کښې تردوی
تکړه يې ؟ »

سکندر ځواب ور کړ : «که دې اداره نه شو کړای نو بیا به دخپلې
سپين سټر گی په مقابل کښې څه تاوان را کړ ې ؟»

«دا س بيه به تاوان در کړم . »

ددې ځواب په اور يدلو ټولو خلکو و خندل .

د اس بيه د يار اس ټيلنټه ( Talenta ) وه او سکندر هسې
يو کوچنی هلك و . په داسې ځا ی کښې چه پا خه سړی نا کا مه دې - دې به
څنگه بريالی شي ؟ مگر سکندر داسې څوك نه و چه دې و ويرېږي .
همداوچه فلپ هم ورسره موافقه و کړه او جازه يې ور کړه چه پر اس
سپور شي . سکندر په دې پوه شو چه اس له خپل سيوري څخه بېرېږي . نو کله
چه ورغی داس مخ يې د لمر پلو ته ور تاو کړ او څنگه چه يې دا کار و کړ داس
ترا کنه شوه . سکندر په ورو ورو ورسره پر اس لاس تېر کړ او ور ته په خبر و شو .
دلته وچه څاروی په ورو ورو ورسره رام شو . کله چه اس په رام شو نو سکندر

او ځوانه زړین ته ور څېرزځ کړ او اس ، غشي په څېر والوت . پهلو مړی سر کښېني سکندر رمځه ور کړه او اس سر واخست . مګر وروسته یې دلاسو نو په مهارت او هسې نرم غبز په تدریج سره رامات کړ او څه وروسته ځ یا تی اس هیڅ سر کښي نه کو له .

وا بی چه فلپ او نور ټول خلك ورته حیران وو او کله چه سکندر داس څخه کو ز شو پلار یې په غېږ کښېنی و نیوا وورته یې وو یل :

«زویه ! ته د خپل ځان سره برابر او د ځان ور سلطنت چېرې و پلټه . ځکه چه مقدو نیه ستا د پاره ډېره تنګه د ه »

المپیا (Olympias) یو ه ډیره ډیره شهزاد ګۍ او یوه خطرناکه ز ړېږه او نبزدې لیو نۍ ښځه وه چه د مېړه څخه بیزاره او د خپل ښکلی زوی په مینه او روز نه کښې ډوبه وه . سکندر ډېر خوش اندامه او د جګې و نې او سپینې بشرې خاو ند و او د اسې ا پسیده لکه کومه یو نا نی ښکلې الهه . اما سره له دې هم دیو نا نیا نو د ذوق سره برابر ښکلی نه و . ولی ډېر زیات ځیرك انسان و . وایی چه د ه ته د خپلې مور تر یخوالی په ارثی ډول پسر ه ورنقل شوی و .

نو کله چه لوی شو . سخت تر یخ ځوان شو . اما داخر ګند ه د ه چه زړه سوی یې هم لا ره او په ډېرو برخو کښې معقول او عادل و .

له سکندر څخه ان د خپل عمر په لومړ نیو مرحلو کښې ( له ۱۳ نه تر ۱۹ کلنۍ پورې ) داسې نښې ولیدل شوې چه دی یې تر پلار ه څخه ښکېره جګړن ښود ه .

همدا ؤ چه یې دفتوحاتو خیالات په دماغ کښې راو گرځېدل .
وایې هرځل به چه فلپ فتحه و کړه په سکندر به غم و .ځکه دهغه کار کاو
چه دی یې باید ترسره کړی .

دسکندر مسلکی استاد ارسطو فیلسوف و . ده داد رس له ارسطو
څخه اخستی وچه دیونان دثقافت سره مینه ولری اولما نخنه یې و کړی .

د ده دسوچه عکسر ی فتوحاتو دخیالاتو سره په سر ترسره نړ ی
کښې دیونان دپو هنې د خپرولو خیال هم ملگر ی شوی و .

په دې وخت کښې سکندر او دده معاصر ینو ته نړی فقط پرشیا ـ دیونان
لرغونی د ښمن او د تو ر ې ا و میډ یټر ا نې د بحیـر ې سیمـه وه .
ځینې فلاسفه په دې عقیده وو چه ځمکه گرده ده .مگر وسعت یې هیچا ته هم نه و
څر گند . سکندر په دې نه پوهیده چه دځمکې پای چیرې دی . بلکه
یوازې دافکر ورسره و چه هرو مرو اوپه هرقیمت چه وی باید ځـان
وروړسوی . دی باید نړی ـ دیونان دپاره فتحه کړی. نو کله چه یې پلار
ووژل شو او دی دمقدونیې او یونان پاچاشو .نو سمدلا سه پـه هغې مـا جرا
پسې شو چه له مودو راهیسې یې د ده په دماغ کښې ځای نیولی و .

و روسته له دې چـه یې دټول یونان څخـه جگړ ن را ټول کړل
دهیلسپونټ Hellespont څخه تیرشو اواسیا ته ورننووت اودټرای Troy
په د ښتو کښې یې خیمې ووهلې .

د ټرای څخه یې د وچې دلارې نه « دفرغا نې » په تاریخی ښار یرغل
ورو وړ . په فرغا نه کښې یو ه بنگـه (Charion)وه چه یو و خت

دقرغانه چیانو د پاچاوه . دا بکی « زیوس » ته ا هدا شوی او دهغه په معبد کښې - دښار په منځ کښې - ولاړه وه . کیسه ده چه د دغې بکوړ زغ د ونې دپتو کی په واسطه په پوښتنه پورې په هسې سخره غوته کلك شوی و او داهم د « سخرې » غوتې په نامه یادیده .

روایت دی چه هرچا که دغه غوته و پرانسته نو به د ټولې اسیا حکمران شی . په سکندر باندې دې روایت ډېره سخته اغیزه کړې وه . نو کله چه زیوس مانۍ ته ورورسید دغې مشهورې غوټې ته په ډېره دلچسپی ځیر شو او وې ویل :

« په رښتیا سره داهغه سخره غوته ده ؟ »

د معبد ملا ځواب ور کړ : « هو ! خپله همدا ده او هرچا چه پرانسته نو به د اسیا واکدار شی . »

« هیڅکله هم چا نه ده پرانستې »

« البته د پرو خلکو خپل زور ور باندې از مېیلی دی . مګر وا ړه ناکامه شوی دی »

سکندر د ملا د ځواب داور پد لو سره سم خپلې اوزې پورته وغورځولې .

بیایې پس سمد ستی خپله توره را واېسته او غوته یې دوه ټوټې کړه . ملا چیغه کړه . ملکری یې ورخطا شول . مګر سکندر هسې مسك غوندې شو او وې ویل . کله که یو کار په یوه ترتیب ونه شی نو په بل ترتیب هرومرو ترسره کېدای شی ده هیڅکله هم دهغه چا خبرې ته دهو سرنه خوځاوچه ویل به یې « دا نا ممکنه ده . »

د هرو خت هر څه چه غوښتی هغسې یې کړې دی.

ایادی هغه څوك نه و چه یې «بوسیفالس» رام کړ او «ا وس یې د «ګاډي» غوټه «هم و پرانسته.

په راتلونکو څلورو کلونو کښې سکندر تولې نړۍ ونیوه. پارسیانو ته یې ماتې ورکړه. فنیقیه یې فتحه کړه او ځان یې د مصر واکمن کړ. په ۳۳۰ ق.م کښې سکندر د مصر څخه روان شو او په اسیایی ور نوره کړه. په جګړو نو پسې یې یو د پوهانو- تجارانو او انجنیرانو له هم چه تل مخ په زیاتېدو وه روانه وه. دې خلکو چه د سکندر د فاتحینو پر پله ور روان وو یو مرستیال لښکر جوړ کړی و. دوی هر چېرته چه سکندر ته هلته یې د یونان د ثقافت خپرو او د پاره مرسته کوله.

ددوو نورو کلونو په موده کښې سکندر پر نور هم لرې و لاړ. د عربستان په بیدیاو و د پارس په د ښتو او د هندو کش په درو کښې یې یرغلونه جنګونه او فتوحات وکړل. په پای کښې د اکسوس Oxus( امو یا جیحون) او جخارتس Jaxartes (سیحون یا سیر دریا) سیندونو ته راورسېد.

لومړی د یوه او بیا د بل څخه تېر شو. وحشی ترکی قبایل یې چه مخې ته ور تلل و یې ځپل او وروسته له هغه یې مخ په جنوب دا فغانستان د غرونو پر لور ور مخه کړه. سکندر او یونانیانو ته دا ـ رته یو هلو یه نوې غیر مکشوفه نړۍ وه. دوی دا سې ځمکې و نیولې او داسې خلك. یې مات کړل چه په یونان کښې یې په خوب کښې هم نه وو لیدلي دا خلك نه یوازې داسې مدني نه وو لکه دوی چه وو بلکه نارینه او ښځې یې

هم داسې نه بریښېدې لکه خپله یو نانیان . البته د لته نه بلا و ې وې او نه دیوان بلکه یوازې همسې یو بل ډول انسانان و و.
په تېر پدو دمهال یو نانیانو ته څر ګنده شوه چه نړی تر هغه څخه چه دوی انګیرله ډېره لویه وه او تر هغو څخه چه فنیقیا نو به ویل لا د ډېرو عجا ئبا تو څخه ډ که و ه . مګر خپله سکند ر هېڅکله هم څه تعجب نه کا و . ده امر و کړ چه دېر غل د خط السیر نخچه راخستله شي ا و مسودې یې حفظ شي. ده پخپله ډېر زیات ښارونه ودان کړل او دغسې یې هر ې خواته کوشش کاو چه نوی شیان هلته پېژ ند ګړ ي .
مګر مدا م به یې کار نیم لا نه و شروع کړی چه به دحواد ثو طوفان پسې واخست او بیا به یې په یر غلګری پیل و کړ .
کله چه په پا ي کښې « افغانستان» ته ورسېد هلته ژمی و ترا ق شو . پسر لی یې خپل جګړ ن په دوو برخوو ووېشل . یوه برخه یې دغرونو دپاسه دخیبر دمشهورې درې د لا ر ې نه رو انه شوه او بله یې په یوه بله لاره . دغرونو نه پورې میدانونو کښې بیا دواړه برخې سره یو ځای شوې .
مقدو نی سکند ر اوس په هند کښې یعنی لس کا له اول زر ه میله دیو نان نه لرې و مګر لا هم دسکندر په بدن کښې ساه وه او د فتوحاتو اودې د پاره دنیاوې وې چه باید دی خپل اس پکښې وځغلوی .
مګر افراد یې داسې نه وو . ځکه څرنګه چه دبېدیا ګرمی - دغرونو یخنی ، لوږې ، تندې او دجګړې سترې یا رت ځبلی وو . نو له دې امله دوی فقط یوه ارز و لر له او هغه دا وه چه باید خپل کور ته و ر سېږ ي .

دوی ته‌ددمې جوړولودپاره دیونان قاپوګا ن ترداهسی پردیووچو دښتو څخه‌ډیر ښه‌او ښکلی برېښېدل .

دوی په‌دې آرزو ګښی‌ووچه‌یوځل بیاهغه‌ځای‌ته‌ورسېږي چه غرونه‌یې مرتو ن (Marahton ) ته ځیر دی او مراتو ن سمند ر ته .

دوی ډیرې‌زیاتې‌وینې‌تویې کړې‌اوزیاتې‌جګړې‌اوېردی‌ میرېږي ایدلی‌وې‌دوی‌همداناري وهلې چه‌خپل کورته ځو.اسکندر هلکاریان‌و د ایـوه ګـله و ډی وه‌او دی بـایـد اجازه ورنه کړ ی . خپله سکندر ترهمد ې‌وخته پورې‌هم لا په ډېرسپېڅلی زړه‌په کار لګیاو .

څرنګه‌چه‌یې‌په دې‌برخه کښې خبرې‌یې سوده شوې نو یې دنورو خبره‌ومنله . مګراوس‌دې‌هم‌څه سودنه‌لاره . هغوجګړ‌نوچه‌سخت‌ستړی او ستو مانه‌وو نورد حرکت څخه‌انکار و کړ .

دو ی‌زیاتی‌بلمه‌نړی‌ـ نه‌نیسی.دلته‌پرسکندرهم‌خپلوافرادوهغه‌څه‌ومنل چه دښمنا نویې هیڅکله‌هم‌نه‌شوه وړپه برخه کولای‌اوهغه ماته وه‌ماته!

وروسته له‌دې چه دوی له‌اندوس څخه‌دهند ترسمندر پور ې سیمه‌ښه‌و لاندې کړه بیر ته هغې سیمې تـه چـه یې خیمه پکښی و هلې وه ـ را وګرځېدل اویونان‌ته دېېر ته تلو په تیاری لګیاشول .

سکند ر خپل یوه‌ستر جنرال نیو رخس ( Neorchus) تـه‌ا مرو کړچه داندوس دسیند‌څخه‌دتیریدلو دپاره بېړۍ جوړ ې کړې‌اودیو ی‌برخې جګړ نو سر ه بېړته د سمندر غاړ ې ته شي ،

پاتې جګړې سره له هغو تو لو کسانو چه په اردو پسې روان وو . او تراوسه يې لا زياته برخه باقي پاتې وه ـ دسکندر سره دساحل په څنډه وخو ځېدل . دا يو هو لسکی سفرؤ . دنيور خس ورځ ډېره بده وه .
مګر هغه حالته چه سکندر ورسره مخامخ وده حال هېڅ بر ښېېد ه له هند نه دپارس ترخليج پورې ساحلی ځمکه يوه وچه بيد يا وه .
سکندرداو بو دپيدا کولو په برخه کښې ډېرو زياتو مشکلا تو سره مخامخ او شوری يې هم تمام و . له دې امله مجبورو چه دغذا په تلاش مخ په ابادېو ور روان شي .
دلته و چه يې نيورخس سره تماس قطع شو . څنګه چه د ی د ۳۲٤ ق . م په پسرلی کښې سوسا «Susa» ته ورسېد ـ په دې وخت کښې يې په سلګونو افرادو او بې شماره « وسترېل » يې دناروغـــی او لوږې دلاسه تباه شول په عين زمان کښې نيورخس دسمندر لاره نيولې وه . دده و اړه بېړی يو نيم سل وې او افراد يې پنځو زرو ته رسېدل . بېړی يې « بای ريمز » او « ترای ريمز » اوله هر حيثه د فنيقيا نو بېړيو ته ورته وې .
په بحر پيما يې کښې ډېو نانيانولار ښوو نکې هم دفنيقيا نو په څېر لمر او ستوری وو او چېرته به چه ممکنه وه نو ساحل ته به يې هم لاس واچاو .
دساحل سره ترغاړې بېړی چلول همېشه خطر اری او پر نيو رخس وخت هم بدر اغلی و دی لومړی د«مون سون» بادو نو په انتظا ر و او دا با دو نه هغه بادو نه دی چه دهند په سمندر کښې به ثبابت پول سر ه

او بې د جنوب غرب څخه اوژ مې د شمال څخه ـ چلېږي ـ څنګه چه نيور خس وخو څېډ نوې بېړۍ د طوفانو نو سره مخامخ شوې بوزيات شمېر بېړۍ يې سره له باره له منځه ولاړې. نيور خس هم د سکندر په څېر دهند په وچ ساحل کښې نه خوا ړه موندلای شو ارنه او به په يونانيانو باندې د لوږ ې ـ تند ې ـ يخنۍ ـ ګرمۍ او نارو غۍ سخت فشار راغی . مګر بله هيڅ چاره هم نه وه برته له دې چه خپلې بېړ ۍ رهی کړي .

يوځای د نهنګانو سره مخامخ شول . يونانيانو هيڅکله هم نهنګا ن نه وو ليدلی نو له دې امله ډېر سخت وتر پد ل . نيور خس په خپلو خاطراتو کښې دا کيسه هم ليکلې ده چه ده دلته څه و کړه .

وايي چه لومړی يې بېړۍ د جګړې دپاره تيارې او کړې اوبيايې افرادو ته امرو کړ چه د نهنګانو ولې ته ور ننوزی او د خپل تګ سره سم په چيغو او نا روشی .

دی وايي : «له دې امر سره دوی زړور شول او د يوې ځانته اشارې سره سم واړه يوځای په مخ ولاړل او کله چه بلاووته ور ـ ورسېدل د زړه له کومې يې چيغې پورته کړې . خپل سور نيان يې بو کړل او د خولو څخه يې شو مره چه ممکنه وه ان د زړه له کومې اوازونه راپورته کړل . نهنګان وترپېدل اواو بولاند ې شول .

له نهنګانو سره د مخامخ کېدلو نه و روسته ان د پرشيا خليج ته تر رسېدلو پورې يونانيان زيا تې د څه بد و پېښو سره مخا مخ نه شو ل

دلته دوی په دې کښې شو وچه د سکندر د لښکر ډېرو سره په تماس کښې شي او نوی شوري سره برابر کړي . مګر دا هغه اومړنی او وروستنی مرسته وه چه دېرپوسره لښکر و کړه . وروسته له دې سکندر په خپل ځای شو .

او نیورخس فیصله و کړه چه بېړی باید خپله د ځان چاره و کړي .

همدا و چه سمندر ته ورننوت .

وروسته د بېړو ز یاتو طوفانی او سختو ورځو څخه د استولا Astola جزیرې و ر ته ستر ګو شوه .

ویل کېدل چه په دې جزیره کښې داسې ښځې میشتې وې چه نیمه تنه یې د ښځې وه او نیمه یې د کب . دغو ځایی خلکو اخطار ور کړ او ور ته یې وویل : «هر څوك چه دې ټاپو ته ور ننوتلی بېر ته ژوندی نه دی ور څخه وتلی .»

مګر یونانیانو چورت هم پرې و نه واهه . ځکه په لسو تېر و کلو نو کښې دوی تر دغو بلاوو یعنی هغو موجوداتو څخه چه نیمه تنه یې د کب ده او نیمه یې د ښځې خطرناك شیان لیدلی وو . برسېره پر دې سمندر د ومره ستړی او سر بد اله کړی وو چه نو ر بې نو څېره له احتیاط نه تېره وه ځکه چه ټاپو کښې دوی ته د خوراك او څښاك څر ك لګېده نو له همدې امله وچې ته شول .

هغو موجوداتو چه نیمه تنه یې د ښځې وه او نیمه د کب درك هم نه لاره .

نه‌سروته ورته‌وینبتان لمرته‌ځلیدل اونه سپینوته ورته‌پوستو نه.

دسایر ن «Siren» زړه وړو نکی اوا و ده کـوو نـکې سند ر ي نه‌اوریدل کېد ي.

اسټو لایوه وچه بید یاوه. بونا نیانوهومره‌څوری چه‌یې کولای‌شو برابر کړاو بیا یې خپلې بیړ یـوخو ځو لې.

کله چه په پا ی کښې اور مز «Ormaz» ته و ر سېدل، نیورخس هڅه و کړه چه سکند رسره‌په تما س کښې شی. دیو څه ا فرادو سره وچې ته‌ور ننو تل.

سکندریې‌وموندمګرهغه‌ددې‌قدرت‌نه‌لاره‌چه‌دې‌چاسره مرسته‌و کړی.

د سکند ر جـګړ ن د نـا رو غی‌ اولو زې د لاسه مړ ه کېدل.

نیور خس‌ستړی اومأیوسه‌بېر ته‌ساحل‌ته‌راغی‌او خپل‌مزله‌ته‌یې‌ادامه و ر کړ ه.

دبحریې‌نیم‌ژو ندی‌غړی په‌پای کښې د« فرات»خولې‌ته وروړسېدل. وروسته‌د یوڅه مزله څخه نیورخس‌اوافراد یې «سو سا» ته وروړسېدل چه سکند راو نوروا ړه جګړن‌هم هلته‌وو.دو چې او سمند رستو نزې اور بې‌وونه‌پای‌ته‌ور سیدل.تکا لیف‌او تلفات‌ډېرزیات‌ومګرعلم ګټه و کړه. ځکه‌چه‌په‌دې‌واسطه‌نه‌یوازې‌دنړی‌یوه ډېره‌زیاته برخه کشف شوه بلکه نیورخس‌هندته‌بحری‌لاره‌هم کشف کړه‌اودمونوسون‌په‌رازونو پوه شو

سکندر د ځمکې پا ي ته‌و نه‌رسېدخو - ده‌او افرادو ته‌یې- ترڅوا وهغو خلکو څخه چه یې دمخه تر دوی په دې بر خه کښې‌معلومات لرل اویا

مقدره وه چه‌په‌راورو سته شو پېژ يو کښې،به يې‌وموميزيات ـ معلومات ور په برخه شو .

وروسته له‌دي چه‌دوي د نيورخس‌سره‌يو ځاى شوو سکندر بابل‌ته مخه‌و کړه.د لته يې‌د مه جوړه کړه‌او يوځل بيا يې خپل ګډه و پوځو بو نه وليدل. ده‌نوی ـ اوياد نوی ـ ډېره‌زيا ته بر خه‌و نيوه او او س‌يې نو بايد سره يو کړی. دی بايد يو جهانی دولت تأسيس کړی .

شرق اوغرب سره‌نوك‌او ـ وری ـ کړی. اوددې دولت سر تر سره بايد يو ثقافت او يو مدنيت وی . ا لبته دا يو ډېر او چت خو ب و اولا دی . امـا له بده مر غه مقد و نی سکند ر ددې خو ب د ليدلو سره سم مړ شو .

مر ګ يې دملا ر يا په تبه و . دمر ګـو خت يې ۳۲۴ ق.م‌پسرلی او دا مها ل يې‌عمر دريد يرش کاله‌و .مګرد نوی ـ له‌پيد ا يښت نه ترد ې و خته پل دا سې ستر جنرا ل او کا شف نه د ی تېر شو ی.

وروسته‌دسکندر له‌مر ګه دده‌امپراتو ري ټو ټه ټوټه شوه‌اود يونان‌ستر تيا له‌منځه ولاړه.مګرروح يې‌تراوسه هم‌لکه دجان برون Jahn Brown پر مخ د رو مي.



# هغه دروغجن چه رښتيايي وويل

کله چه سکندر د ناا شنا ځمکو په کشفو لواو نيولو لگياوو د يونان د نړۍ يو بل نفر د غرب او شمال د ځمکو په پلټلو لگياو. ددې سړي نوم پايتيز Petheas» او د يونان د مستعمرې ماسيليا «Massilia» اوسيدونکی و.

د يوناني سکندر دز ماني نه ډېر د مخه د غربي ميله يتر انې په سيمو کښې په ايتا ليې کښې د هغو سوا حلو د پا سه چه نن يو کو سلاو ياده د سسلي د ټا پو د پاسه او د فرا نسې په جنوبي سا حل کښې مستعمر ې ودا نې شوې. ما سيليا په فرا نسې کښې د مار سل د ننبی بندر پر ځای جوړه وه . کله که تا سو نخچې ته ځير شیء نو به وو ينی ، چه ما سيليا د هر قل د ستنو يعنی د ميله يترا نې د غر بی وره څخه چه م-و ز بې د جبل ا لطارق ابنا بولو او فنيقيانو خپله کړې وه - دومره لرې نه وه.

ما سيليا يی پا يتيز يو منجم او رياضی دان او د نوروټولو ساينس پوهانو په څېر د جهان اودا شياو دا صا لت سره علا قمند و. د ی د يو نانيانو د هغې ار يا نوو نکې ډ لې يو غړی و چه د سوال او ځواب څخه يې د بشر لر غو نی پو هنه جو ړه ده.

دا مهال د يو نان دواړو پو هانو عقا يد د نړۍ په باره کښې سره يو او کاملاً درست نه وو. يوه پوه و يل چه مځکه چار کو نجه او په کا ئناتو کښې

دا سي مو قعيت اري لکه يو قاړو يه يو سمندر کښې . مګر له بلې خوا فيسا غورث «Pythagoras» فيلسوف دا ادعا کو له چه ځمکه ګرده ده. ده و يل: «ځمکه يوه کره ده چه دواړو خواو و نه يه سمند ر محا طه ده» فيساغورث لومړ نی سړ ی و چه يې دا فکر راميدان ته کړ چه ځمکه ګرده ده او ديونان په پيروزياتو پوهانو کښې چا چه په دې بر خه کښې لومړی موافقه ور سره و کړه هغه مليتی هيکا تيس «Hecatacus» و. پايتيزد هيکا تيس شا ګر داود هغه ا ستا دا نه ښوو نې ته معتقدو.

دی هم په دې عقيده و چه ځمکه ګرده ده او سپوږمۍ يې هم همداسې يو شی بلله.

دهغو فنيقی سودا ګر و شخه چه د ماسيلاد يا سه متوقف شوی وو - پايتيز په غر ب کښې د قلعی د ځمکې خبره اور يد لی وه . ده فيصله و کړه چه بايد د غه ځمکه خپله وويني او په لومړی ګام کښې د غر بی يعنی هغه سمندر دمدو جزر سره ځان ا شنا کړی چه د هر قلد ستنو نه ها خوا پروت دی ا لبته دا چه پايتيزد فنيقيا نود بېړ يو شخه په شخه تر تيب تېر او د اتلانتيك سمندر ته ځنګه و رننو وت مو ږ ته نه ده ځرګنده مګرد اښکاره ده چه په ۳۲۰ ق م کښې د ابنا شخه بې له د ې چه څو ك و ر با ندې پوه شی تېر شو.

پا يتيز ځنګه چه ا تلا نتيك تهور ننوت مخ په شما ل و خوځېده ده دهسپا نيې او د فرانسې د غر بی سا حل پرا متداد خپله بېړ ی ر و خو ځوله لار ښوو نکې يې امرا وستور ی وو . د ده هر هغه شي په شاو خوا کښې چه

په مخه‌ور تله پوره او په ځير سره مطا لعه‌و کړه.يادداشتونه‌يې له ځان سره‌وا خستل‌اودسفر په پاې کښې يې يو کتاب و ليك. اماله بده مرغه چه‌يادداشتونه‌اود کتاب‌تولې‌نسخې يې ورکې‌دي.يواځې ځينې اقتباسات له دې کتاب څخه شوي دي‌اود هغو ځينو نوروپو هانو په‌اثا رو کښې ليد ل کېږي چه‌يې‌دانتقاددپاره‌را اخستي‌دي. مګرپه واقعيت کښې هغه هم په هيڅ‌شمېرل کيږي.

ځرنګه چه‌د غه‌منقدپو هان هېڅ‌کله‌هم دهرقال‌له ستنوڅخه‌هاخوانه دي‌تير شوي‌او معلو مات يې‌دځمکې په‌باره کښې‌ډېر کم‌دي‌او کاملاً د ميلو يتړا نې په بحيرې پورې محدود دي نو يې له همدې‌ا مله‌په هغه وا قعيت کښې شك کړ ي چه پا يتيزو يلې دي

دوی دهغه پر کتنو د هغوشيا نوپه‌باره کښې‌چه‌خپله‌دوی هېڅ‌کله‌هم نه‌دي کړي‌ملنډې‌وهلې . دپا يتيز له‌منقدينو څخه‌ځينې دده‌معاصرين دي مګر د ډ يرو د ژو ند مهال بې ورو سته له ده څخه د ی . اما واړو په‌ا تفا ق سره دي د ده غجن بللی د ی.

ما سيليا بې پا يتيز څه د رو غ و ويل ؟

دده دروغ‌داو چه‌بې‌په لومړی سر کښې اد عاو کړه چه‌دقلعي‌ځمکه دمتعدد ور کو چنيو ټا پو ګانو څخه نه‌ده جوړه.بلکه‌دا يوه‌ستره‌جزيره‌ده ده وې چه د ی په د ې خبره ډېر سخت معتقد دي.

څنګه چه د ی‌دارو پاد سواحلو سره‌بڼه وړا ندې ولاړ دا سې‌يوا ړ کوچنيوټاپو ګانوته‌وررسېدچه‌خپله دده‌هم‌دقلعي‌دځمکې‌شك‌پرې را غی مګر دټاپو ګانو ځايي خلکوپه دې‌پوهاو چه رښتيانيه دقلعي ځمکه

« دېوړي په‌مزاله يوه ورځ » دشمال خواته‌پرته وه ده داخبره و منله .
برسېره پردې‌پايتيز داهم ښر ګنده کړه چه‌دقلعې د کانو نو افسانوي‌ټاپو
ډېر پراخ‌دی .

ګله‌چه‌پايتيزله‌دې‌ټاپو څخه ګرد چاپېره و ګرځېد نوداورته ښر ګنده‌شوه
چه‌د غه‌ټاپو‌ز يوه مثلث په‌شان‌جوړ اود غر ب خواته يې يو بل ډ ېر لو ی
ټا پو هم پروت و .

دغه‌ټاپو دقلعې دټاپو څخه کوچنی و. مګر دمېنه يټوانې دنوروټولو
ټاپو ګانو څخه لوی‌و . ښايي چه‌پايتيز بريټانيا اواير لينډ مو ندلی‌وی .
ځکه ګله که‌تاسو بريټانياته په‌ځير سره‌و ګوری‌نو به‌دادرته ښر ګنده‌شي
چه په رښتيا سره هم ديوه مثلث شکل لري .

**پايتيز رښتياويل مګر ځينې خلك يوازې هغه څه منلای شي**
**چه يې وويني اوحتی ډېرېې وروسته له ليدلوهم نه منی .**

پايتيز دبريټانيا په‌بېلو بېلو برخو کښې‌پياده شوی اودهغه ځای ځايی
و اس‌يې مطالعه کړې دی .

ددې‌ملك ځايی‌خلك‌رټ‌په سوله مېن‌خلك‌وو‌چه بدنو نه‌به يې په‌شنه‌ر نګ
رنګول . پوښاك يې دڅارو پوڅرمنې وې او کراچۍ يايو ډول بګۍ
به يې چلو لې . دقلعې د کانو نو کار ګريې‌د کا ر پـه و خـدمت کښې
ليدلی‌وو .

ده ته ښر ګنده شوه چه دوی ډېرځيرك او صميمی‌خلك‌دی او دا يې

وانگیرله چه له بېلو بېلو ولسو نوسره ددوی دتجارتی مناسباتو ده‌ټینګتیا سبب هم همداشی دی .

کله چه پا یتیزد بریټانیانو ټولو څخه شمالی برخې ته ورسېږدولته یې دیوې بلې ټاپوخبرې هم واورېدې چه دبیړی دشپږ وورځودمزله په فاصله دشمال‌خواته پرته ده . دا جز یره ښایی ایس لینډ (Iceland) وه یا ښایی چه هیڅ جزیره نه وه بلکه د ناروې دساحل یوه ګوګه د ندانه د اره برخه وه .

دسکاټلینډ ځایی خلکو چه پایتیزورسره غبږ پېدلی و . داجزیره تیول «Thule» بلله اوویل یې چه ددې جزیرې ګردچاپیره یو عجیب اومرموز بحربروت‌دی اوددی ورته «منجمد بحر» «Crusty Oceun» وایه دوی ویل چه د ایو منجمد سمندر دی او هیڅ بیړی هم په سلامتی سره نه‌شی ورڅخه تېرېدلای .

دسکاټلینډ خلکو هم ادعا درله چه «تیول دلمر اوېدلو ځای دی.» یعنی څه ؟

یعنی په شمالی سمندر کښې‌دیخ ډېر سترستر پر کندونه وواوهلته داسې وخت هم راته چه لمر به د افق څخه نه ګوز ېده بلکه‌داسې به ښکارېده لکه چه‌په اسمان کښې ولاړ وی .

ځایی خلکو په ډېره ساد ګی‌سره د خپل‌فکر سره سم پا یتیز ته رښتیا ویلی‌وو اوپایتیز هم چه یې فوق العاده عجایب لیدلی و و ددې دپاره څه دلیل‌نه لاره چه دې شک پکښې و کړی .

ده - چه لوید یخ سمندر ته دور ننوتلو تروخته پوري دمیله یټراني دطوفانونو نه پرته دبل هیڅ پیروونکي شي سره نه ومخامخ شوي - دلته یې ډېر فوق العاده مدو جزر رولید - دلته ده ډیري قوي څپې دغبار او غورځنګونو سره یوځای ولیدې چه دبریټانیاد سواحلو سره لګیدلې.

ده دا ټول شیان یادداشت کړل. مګر داچه ددې یاددا شتو نو څخه یې حاصل څه و. هغه دا و چه یې په خپل عصر کښې د یوه ډېر لرغونې درواغجن نوم وګاټه.

معاصرینو به یې په ډېر تعجب سره ویل: «نوې فوټه لوړې څپې! هیڅ امکان نه لري.»

منقد ینوبه داویل چه: «دالیو نتوب دی! نوې فوټه لوړې څپې هم کله چالیدلې دي؟»

یقین دی چه دمیله یټراني په بحیره کښې به هیڅکله هم چانه وي لیدلې.

هغه بادونه مدو جزر او غبار چه پتیز یې یا دو نه کړي ده داسې خیالي شیان ګڼل شوي دي لکه د پریانو کیسې.

د میله یټراني خلکو ویل: «ایا خلک په داسې سیمو کښې هم هست دي چه سمندر یې دسړو له وزره یخ نیولی وي داهسې چټیات دي.

تیول له ارهشته نه. پتیز یو پلټونکی دی چه هر څه له ځانه جوړوي.»

رښتیاده چه پتیز هیڅکله هم تیول ته نه دی وررسیدلی. دغه ټول داهم موږته نه د ه څرګنده چه دی څو مره مخ په شمال تللی دی. مګر دده

دسمندرونو دتشریحاتو څخه موږ انګېرلی شو چه دشمالی منجمد سمندر دایرې ته وررسیدلی دی .

ده ته سویډونکی یخونه ورتر سترګو شوی دی او کنګل سمندر یې لیدلی دی .

دغه پول دېرو سختو غبارونو سره مخامخ شوی دی .

ده ته دارکنی «Orkney» او شټلینډ « Shetland » دجزیرو ځایی خلکو دیخ دغو پرکنډونو کیسې وکړې چه دیوی دسمندر دیو ته ورته بلاپه نفس به سکته پورته خوځېدلې .

پتیز پوهېده چه داهسې چټیات دی خو یخونه یې دبېړی د پاره ډېر ستر خطر دی . نو همدا وچه دسکاټلېنډ شمال ته تاوشو او خپلې لارې ته یې دبریتانیا ګرد چاپېره ادامه ورکړه . وروسته له دې چه دبریتانیا نې ګرد چاپېره وګرځېد دانګلیسی کانال څخه تېرشو او دشمالی اروپا سواحل یې ان دالبی ELBE ترسیند پورې کشف کړل .

دلته داوېر قدوسپین پوټکو خلکو سره هم مخامخ شو چه اوزدې اوزدېږ یرې یې لرلې اود ښارویو پوټکی یې اغوستی وو . دالومړنی معلومات دی چه موږ یې د ټیوټونز Teutons ( یو د جرمنی پرګه چه د اروپا په دې شمالی برخه کښې میشته وه او له فنیقیانو سره یې دعنبرو ډېربوخ تجارت لاره ) په باره کښې لرو .

پتیز یو ځل بیا د ستورواومدو جزر په باره کښې خپلې کتنې وکړې او په پای کښې بېرته کورته راوګرځېد . خپله بېړۍ یې بېرته داروپا

دساحل په امتدادوخوځوله دفرانسې نه را تاو شو د بسکې Biscay دخليج نه چه هغه‌وخت دنهنګانو څخه ډك و ـ تيرشو بيا ناخبره‌دهرقل دستنو څخه ووت اودمسيليا Massilia بندر ته ور سېد . په مسيليا کښې يې دې پسې شو چه دخپلو مشاهداتو په باره کښې فکرو کړي اوخپل بد شاګو مه کتاب واليکي . د ې خپلو مشاهداتوڅخه ځينو ډېر وښو نتيجوته ورسېد . دې‌اوس وچ کلك‌دې خبرې‌ته‌رسيدلی‌وچه دمدو جزر کنترول دسپوږ مۍ په‌واك کښې‌دی . دقطب‌دستوری په موقعيت او له قطب سره‌دهغه‌په اړيکوپوره‌پوه‌شو .

برسېره پر دې ده ته داهيم څرګند ه شوه چه دغر بی سمند رمد وجزر دميلېږترانې مدوجزرسره رتې متفاوت د ی .

دغه ډول‌پايتيز دشمالی‌منجمدسمندرلومړنی ګرځندو يلل شوی دی . يـا پـه بله ژبـه تر کـوم ځا يه چه موږته څرګنده ده ـ د ی او مړنی عالم وچه يې دانسا نانوعادات اودودونه مطالعه کړل .

دده دلارغو نی بر تونز «Britons» څېړ نه تر کوم ځا يه چه تاريخ ته څرګنده ده ترټولو نه قدامت لري .

کومه لاره چه پتيز دخپل سياحت دخط السير په دو دو تا کله ـ هغه زيار ايستونکې طريقه چه يې داطلاعاتو دټولو او دپاره اختيار کړه ـ هغه په اخيرسره‌لاره‌چه يې‌نتايجو ته درسېدلودپاره‌ونيوله اوهغه ليوالتياچه يې دنوروالاس ته دخپـلو معلوماتو دوررسولو دپاره لرله ـ رته يو نانی او فقط ديو نيا نو وه .

یونانیان چه دسختو متجسسو دماغو نو خاوندان وو. تل به دې پسې وو چه د ې خپل معلومات خپاره کړي.

دوی د فنیقیانو په څیر نه وو، چه که به یې چادا کتشافاتو څخه استفاده کو له زړه به یې پړ ك چاوده.

داډېره د تأسف وړ خبره ده چه پتیز ـ سره له دې چه دی دې ته چه دې خپل معلومات نورو ته تقدیم کړي ډېر زیات لیوال و ـ بیاهم دروغجن اوشو ده بلل شوی دی.

یونانیان د نوو افکارو د اخستلو او قبلو لو د پاره تل ناست وو مګر نوی متره لوړي څپې. کنګړ سمند رونه امر چه هېڅکله نه او پېژی داهغه خبرې وې چه د یو نیانو عقل نه شوي منلای.

په دې ترتیب د مسیلا پتیز په روایاتو کښې د لرغو نې نړۍ ترټولو نه لوی دروغجن و بلل شو. ده ته چه خلکو کتل د فنیقیانو دروغ یې له یاده اېستل او د اشیایی له دې امله چه دی یو یونانی فیلسوف و، نو یې څکه « دروغ » هم ډېر غټ دروغ بر پښنېدل



# دسلیشیل دغرونونه‌ها خوا

څو مره سیاحان چه موږ تراوسه پرې وغږیدو هغه واړه د میلاد یتراني دنړۍ محصول وو. مګر په تېرېدو د مهال زماني دا هم پېښه کړه چه یو کرځندوی دلرې شرق څخه راپاڅېد. دایو چیني واو چا نګ چن «Chang Chien» نومید ه.

چانګ چن نږدې دوه سوه کاله وروسته د پتېیزاو سکندر له مهال څخه ژوند کاوه. دی دوقی «Wa Ti» دچین دامپراتور دشاهي کار پرمنصبدار و وقي یو ډېر ستر سیاستمدار او ډېر زیات عمر ژوندی و. په ۱۳۸ ق.م کښې کله چه دا کیسه شروع شوه دی فقط اتلس کلن و. دی دسکندر په څېر لاهلك وچه دیوې ډېرې قوي امپراتورۍ حکمران شو. خو بیاهم دسکندر په څیر دخپل سن په نسبت ډېر زیات هوښیار و. ده خپل شاو خوا ته لایق کسان او ځوانان را قول کړل چه یو له دې خلکو څخه جنرال چانګ و.

چانګ چن دشي سي «Shesi» د چین دیوې غرنۍ سیمې څخه چه خلك یې په قوت او زړورتیا مشهور وو. راپاڅېد.

چانګ چن یوازې یو تکړه جګړن نه و. بلکه دزړه ورونکې ونې ښې ځوانۍ او پوره زکاوت خاوند هم و. ده دامپراتور په دماغ

دېراوچت ځای نیولی و . دومره چه یې فیصله وکړه چه یې دیو چی «Yuehchih» دېر ګې په سلطنت مامور کړی .

یوچیان داسې خلک وو چه یې و پښتان تورو و مګر سترګې یې شنې وې.

دوی یو وخت دوقې د قلمرو په سرحد و نو کښې ژوند کاو. مګر دلرې شمال دېر ګوله خوایرغل یرې وشو واو ایسته وشړل شو ل . دغه خطرناک شمالی قبایل دچینیانو له خوا دسنګ نو Hsiung-nu یاهونانو Huns په نامه یاد شوی دی . وقی په دې پسې وو څو ځان یوه کړی چه بد یوچیان چېرته هستو ګنه لری او داله دې امله چه و کړای شی یوتړون رسره و کړی اودهونا نو په مقابل کښې چه یوستر خطرو . ددوی مرسته و کړی .

همداوچه امپراتور چانګ چن ته وویل : « ته بایدداخبر ګنده کړې چه یوچیان چېرې تللی دی اوزماد پلان څخه یې باید خبر کړی . زه به تادیو چیانو دپاچاپه دربار کښې خپل سفیرمقرر کړم او ته باید ترهغو مخ په شمال ولاړشې ترڅو چه دی اودده ولس ومومې. »

چانګ چن ځواب ورکړ : « اعلحضرته ! په ستر ګو . . . . »

کله چه دا مپراتو رددربارهو ښیارا نودا خبره واوریده نو یې فکر و کړ چه دی بې سده شوی دی .

دې بې پایا نه بیدیا ته دهونا نودهیو ادزړه ته د یوه سړی ا و یاکوم قولی ددې دپاره استول چه دې هغه خلک ومومې چه له کلو نو کلو نو نه راپه دې خوا یې پرته دنامه څخه نورهر څه له منځه تللی دی- لیونتوب نه دی:

هو ښيا ر ا نو خپل سر و نه‌وخو ځو ل ا و وې ویل : « چانګ چن به هېڅکله هم بېر ته‌ژوند ي رانه شي . دا کار نا ممکنه دی . »

مګر چا نګ چن‌وویل‌ یه ! هېڅکله هم نا ممکنه‌نه‌ده . امپرا تور هم ور سره و منله .

چانګ چن‌ یو ماجراجوو ، او امپر ا توریوتن«ها ن» . دوی دواړه دمتعد دودلا یلو له‌مخې په‌دې معتقد وو چه دخپل د ماغ په مرسته هر کار سر ته رسوای‌شي . همدا‌وچه شال پېړی‌د مخه چا نګ چن‌خپل یون شر و ع کړ .

د ا مپر اتو رشل تنه جګړن دهغه دتا تارغلام‌تانګی‌فو Tang-i-fu په شمول ور سر ه‌روان شول . تانګی فو د شما لی‌سیمو ا وهو نا نو په ژ به ګړ ېد ه .

ده په‌د اسې‌یو مهیو اد کښې په غشو و یشتلو کښې نوم ایستلی‌وچه خلك تول دفن‌استا دان وو کله‌چه موږ دغشی اولیند ې نو م ا خلو نوموسمدلاسه را بن هو ډ Robin Hood او ویلیم تل William Tell او د مر ی ا نګلیند Merry Eng land بز ګر ا ن ستر ګو ته نېغ ود ر ېږي‌مګر حقیقت‌دادی چه‌تر‌تو لو نه ستر غشي ویشتو نکی‌لرغو نی چینیان‌وواو ددې خبرې داثبات دپا ره‌تر دې نه بل اوی د لیل څه دی چه‌په دوی کښې په پېړیو پېړ یود مخه ترنو روخلکو د افن را یج و .

دغه ډ ول‌دوی دټوپك‌دارو او‌چاپ‌هم‌ا ختر اع کړاو‌په‌د ا سې وخت کښې یې یو د پوستې سیستم لاره‌چه ارو‌پایا ن‌به دځنګلیا نوڅخه‌هسې

لېږ څه بهتر وو . داډېر ښځو او مکرېه میلو نو چینیا نوته مو ږ ترا و سه
هم لا «ا روپا بی ځنګلیا ن یو . »
زمو ږ اوسنی تمد ن که هر څو مر ه ستر دی بیا هم دچینی تمد ن
په نسبت نو ی د ی .

**دا مریکې تاریخ دنږدې څلوروسووکلو نومحصول دی. اماچینیان څلو رزره کالن پرله پسی تاریخلری .**

ګومان کو م دمخه تر دې چه د چا نګ چن په ژو ند پېښو پسې شو ، ښه
په داوی چه دده دهېو اد دخلکو په با ره کښې څه زیات معلو مات پیدا کړو.

**ځکه تاسې ترهغوپورېپوشخص پوره نه شيءپېژندلای ترڅو چه دهغه محیط اوهغې اجتماع په با ره کښې چه یې دی محصول دی پوره معلومات پید انه کړیء .**

کله که یو ې داسیا نقشې ته ځیر شيءنو به و وینيءچه ددغې وچې منځنۍ
برخه یوه لو یه دښته ده په دې دښته کښې دوه مهم سیندو نه تېرشوی دی یانګسی
کیانګ Yangtze-Kiang او هوانګهو Hwang Ho یاژ ېړ سیند . ددښتې
په شما ل کښې د ګو بې بیدیا او ځنګلې پرتې دی . شرق ته یې د پا سفیك
سمندر ،جنوب ته دهند چین تاوده ځنګلو نه ا و جنوب او جنوب غرب ته
د هما لیا ستر لو ړ ونه واقع دی دمنځنۍ اسیا لویه بید یاد نورې نړ ی نه
څخه د طبیعی دیوالو نو په وا سطه کا ملاً بېلې شوې ده .

په همد ې غرو نو ، ځنګلو نو ، بید یا وو او سمند ر با ند ې پېچلې
سیمه کښې وچه د بشر تا ریخ شر و ع شو . دتمد ن ډ ېر ارغونی اثار
په مصر کښې مو ند ل کېږ ی . مګر د انسا ن دلر غونو ا ثا رو نښې

په منځنۍ اسيا کښې ليدل کېږي . دلته د همد ې سيمې له ځايونو څخه په يوه ځای کښې و، چه انسان دا نسا نيت پر مرحله قدم کېښود . دنړۍ له هم دې برخې څخه و، چه انسان د نړۍ نورو برخو ته مهاجرت وکړ.

لرغون پېژندو نکو ته په يوه ورځ هرومرو دا څرگنده شي چه دیا نگسی اوژیړ سیند په ناوو کښې حتی د نيل او فرات د سیندونو دناوو څخه د مخه لا تمدن موجود وو . مگر له بده مرغه (صرف نظر له دې څخه چه په دې برخه کښې څومره شك لرو) دا احتمال نه لری چه دې موږ د غه خبره ثابته کړو .

د چين هوا د مصر په څير وچه نه ده بلکه لنده ده او په لنده هوا کښې هر شی په تيره بيا لرگی ډېر ژر پوده کېږي او لرغونو چينيانو خپل کور ونه هم د لرگی څخه جوړول .

دوی حتی ليکنې هم د لرگی پر ډېرو کولې او بو تان بې هم د لرگيو څخه جوړول. نو له دې امله ددوی لرغونی ډېرزيات اثار له منځه تللی دی . ښکاره ده چه هېڅوك هم د هغو پېښو په باره کښې چه د ۴۰۰۰ ق . م په شا و خوا کښې شوی دی کره معلومات لاس ته نشی راوړای .

لرغو نی چينيان په دې عقيده وو چه جنت فقط ددوی دپاره دی او تقدير داسې فيصله کړې ده چه نړۍ بايد همدوی اداره کړی .

دوی خپل هېواد (مرکزی سلطنت) باله او د لرغونو مصريانو په څېر په دې عقيده وو چه ددوی هستوگنځی د نړۍ مرکز دی. ددوی په فکر

ةول هغه خلك چه يې د «مركزي» سلطنت څخه بهر ژوند كاوه ځنګليان و و . اود ځنګليانو په باره كښې له دوى سره دا فكرو چه ياباید تابع شي او يا هيڅ و ګڼل شي .

چينيا نو خپلو امپراتورانو ته د خداى دزوى په ستر ګه کتل او هم يې د مصر يا نو په څېر ترېوه حده پورې خدا يان ګڼل .

په هرصورت دا چه ددوى امپراتور خداى و او كه نه دا بله خبره ده مګر دا يې د امپراتور وظيفه ګڼله چه ولس بايد په هوښيارى سره او په ښه ډول سره اداره كړى . اما كله به كه امپراتور ددې كار له عهدې نه شو وتلى نو دا خلكو خپل اسمانى حق باله چه د هغه پر ځاى كوم بل امپراتور و ټاكي څرنګه چه د غه لړ غونى امپراتوران تل په دې پسې وو چه خپل مقام او تخت و تاج حفظ كړى نو به يې كوشش كاو چه خپله اداره په عاقلانه ډول ترسره كړى .

ددې كار د پاره دوى د مرستې په فكر ډېر زيات يوه خلك خپل دربار كښې را ټول .

په دې وخت كښې پرته له خپله دمځنيو د «مولود» څخه نور ترهرچا نه دغه ډول پوهان زيات محترم وو . دا مهال عالم كېدل دومره ستر شان و چه د خلكو نهايي ارزو همدا وه .

دا دى يو ډېر ښه كاره تو پير د دغو لړغونو او هغو ډېرو معاصرو خلكو د تفكر د طرز ترمنځه چه له بده مرغه پوهانو ته ددا سې غير عملى خلكو

په ستر ګه ګوري چه باید له مشور ي شخه يې ځان وژغورل شي .

دې فکر هېڅکله هم په چینیا نو کښې لاره نه لرله.

پههر صورت کله چهو قي امپراتور شواو چین تر یوه سترمرکزي حکومت لاندې راو ستل شو نو صنعت او هنر ترقيو کړه او د ګاونډیو هېوادو نوسره سودا ګري ډېره قوي شوه. د خلکو ژوند د هغو دوو سترو پوهانو په لار ښود نو بنا وو چه کلونه کلونه د مخه د وقي دزېږ ېد نې شخه مېره شوي وو.

دا پوهان لو قسي loa-tse اوهغه شوك و چه موږ یې د کا نفچیوس Confucius په نامه پېژنو.

دې پوهانو دارام ژوند او ښو لار ښودنو په بر خه کښې ډېر ښه او داسې قوانین له ځان شخه پرې ښودل چه تر اوسه هم دوي د همدې قوانینو له امله دچین دمشهورو فیلسوفانو په لړ کښې تر ټو لو نه ستر ګڼل کېږي. لنډه دا چه څو مره دوقي دسلطنت دوره له نیکمر غیو شخه ډ که وه هو مره به ارامه دوره هم وه خو بهدې شرط چه هغه ځنګلیان ـ سنګ نو Hsiung-nu نه وي چه نه یې ماته ور کولای شوه او نه یې ستر ګې ور شخه پټولی شوې .

داد شمالي جلګو خطر ناك کوچیان تل دزېږ سیند دناوې د خلکو د تخر ګ اغزي وو.

څو مره چه وخت تېر او د دوي تعداد زيات شو هو مره یې خطر هم ډېر شو . همداو چه یوه ډېر غښتلي او ظالما مپرا تور چه یې دو قي شخه سل کاله

دمخه‌ژو ند کاوه - دهو نانو دمخ نیوی په غرض - د منځنی قلمرو دشمالی سر حداتو په‌عبو ر یو ستر د یوا ل جوړ کړ . ددې دیوال په‌جوړولو کښې په زرګونو کارګر-جګړن-مریان-او بندیان مړه شول. دا دیوال ورو ستنیو امپرا تورانو لا هم پسې ټینګ کړ ترشو چه‌دنړ ی دلر غو نو عجا یبو په لړ کښې ودر ید.

نن ددې دیوال هرمیل - دحال په‌ژبه - د هغه‌رهشت اوخو ف شهادت ورکوی چه هغه و خت د هو نا نو له خوا خلکو ته ا لهام شو ی و . امااوس په‌دغه منځنی قلمرو خلك په‌دې دیوال هم ډاډ ه نه وو.هو نانو سره له دې هم چه په شمیر ډ یر کم شوی و - په دیوال کښې لا ره وکړه ور ننو تل او په یر غلګری یې ګو تې پورې کړ ې

دوی دلیونو - لیوانو په څیر دمغو لی یا بو ګا نو پر شاسپاره په‌شمالی چین کښې را شوه شول . په‌لاره کښې څه چه په مخه ورتلل وا ړه‌یې وسوځل - وځپل او ووژل .

چینیان یو څه مهال ورسره و جنګیدل.څه موده یې دسرو زرو - جواهرو او ښکلیو ښځو په واسطه مخه ورو نیوله مګر په پا ی کښې هیڅ شی هم کار نه کاوه او هو نان پرې را غلل.

هیڅوك هم نه‌شی کولای چه د طبیعت د یوې قوي یادوزو سترګواو وزو خلکو مخه و نیسی او هو نان هم وزی - بدسولی - ظالم او ډیر بدې ور ځې اخستی خلك وو .

د ۱۳۸ ق . م په شا و خوا کښې په مر کز ی سلطنت کښې ګډوډ ی

جوړه شوه او هونانو د یر غلګرو سودا ګری بنده کړه په شمالی
ایالاتو کښی بزګری سقوطو کړاوقول هغه خلك چه ترحملې لاندې
سرحداتو کښې پراته وو په ترا کښې شول. دوی به دې چورت کښې و
چه کله به په خوازه خوب بیده دمرګ خولې ته ور ولو یېږی.
نوهمدا وچه دچارې په فکر شول او ویل یې چه باید یو څه چاره وشی.
وئی بوهېده چه بوازې دیر غلګرو مخ نیوی څه سود نه لری. له بلې و
څخه هم څه نه جوړېږی اوهم دغه ډول دې ته کتل چه و د رېېزه
هونان څه کوی داهم دسلطنت خرابی ده.
بالاخره وئی فیصله و کړه چه زیاتې نو د هیلې مخ تور دی ـ ځکه ده
هونان ډیر ښه پېژندل.
دی وئی ـ دمنځنی سلطنت امپراتور بایددبر برانوسره جنګ خښ
کړی تر څو یې یاایل کړی اویا یې داسې وزغلوی لکه هغوی چه
یوچیان زغلولی وو.
وروسته له دې دفاع ولو که په ډیر ښه صورت هموی ګناه ده.
وئی په مشهور عسکری چل ډیر ښه پوهېده. مګرداهم ورته ښکاره وه
چه په هره جګړه کښې باید یوملت ملګری ولری. دلته وئی فیصله
و کړه چه باید د ګاونډیو ولسونوسره ـ چه هغوی هم دهونانو څخه
کړ که کوله اوور څخه په وېره کښی وو ـ تړونونه و کړی.
ددې تړون دپاره به دیو چی دبې وسیلی پر ګې څخه څوك زیات تیار
او تړك ناست وی؟ ځکه نور څوك خو څه چه خپله چینیان هم دهونانو

دلاسه دومره نه وو ر پېښدلی لکه دوی . دوی ټو کړي ټو کړي شوی وو مشرانې نیول شوی او وژل شوی وو او دهو نانو افسرانو دنوی د پاچا دسرد کاسې څخه دشرابو کټوری جوړ کړی و . له هغې امله وچه یو چیانو فیصله و کړه څو کوم محفوظ ځای ته هر چېر ته چه وی ولاړ شی. وتی دوی هر چېر ته چه وودهو نانو سره د جګړې معا هدې ته راو بلل او ځینی خلك یې ددې دباره چه خپلې شا و خوا سیمې پوره ځا نته څرګندې کړی شاوخوا ملکو نو ته ور لېږل . په دې بر خه کښې چاچه دغه د مسافرې ګرانه او خطرنا که وظیفه په غاړه واخسته هغه چانګ چن Chien Ghang یو ځلمی جګړن و . دامپراتور مشاورینو ددې کار په باره کښې وویل «داډېر ګران مأ موریت دی او دا سړی به ددېوال نه یو ګام لا ها خوانه وی تللی چه به ووژل شی »

چانګ چن وویل : « زه به هرو مرو د ستر دېوال څخه واوړم . یو چیان به وموم او بیر ته به هم ځان را ورسوم . »

چان وروسته له دې چه امپراتور د خېریت دعاورته و کړه دیوې قافلې باراو ښانو ، سل تنو وسله والو مېړو نو او خپل یوه مریی ټا نګی فو Tang-i-fu سره وخوځېد . قافله په هغو قیمتی سوغاتو نو باروه چه دیو چیانو پاچا ته استول کېدل او دا سوغاتو نه عبارت وو د ورېښمینو توپو نو ـ ټـو کرانو ، ګرانبها جواهرو ، نایابـه ګـانو او ښکلیو چینی لوښو څخه . دا هسې یو ه ا فسا نوی قافله وه چه دیوې نامعلو مې سیمې پر لور استول کېدله .

کاروان د ستر دیوال څخه لا نه وا وښتی چه د هونا نو یوې ډلې ور باندې یرغل و کړ ۰ دوی دوزوغالبوزو دلښکر په څېر په چانګ چن او د هغه دلارې پر ملګرو ورو اوښتل ۰ د جګړې په پای کښې فقط ټانګی فو اوچانګ چن او دهغه څو تنه افراد ژوندي پاتې شول ۰ مګر له دوی څخه هم برته دچانګ چن او ټانګی فو څخه نور واړه په بند اوشکنجه کښې مړه شول خپله چانګ چن هم ځکه ښایي نجات وموند چه تار تارو او په تار تاری ژبه پوهیده ۰

دیوچی پاچاسوغاتونه واړه ضبط اودغدی ترمنځ دغنیمت په توګه تقسیم شول خپله چانګ چن یې هم د بندی په حیث خپل سردارته و روست ۰ دامهال دهونانو مشر یو ډیر بد غونی سړی خان لوچن Khan Lou Chien و ۰دی سړه له دې چه ډیر ظالم او سفاک و په چانګ چن یې ،نه پو هیږم له څه در که ،زړه راغی ۰ ښایي له دې امله و چه ډیر ښکلی اوزړه وړونکی بر ښیښېده یاداچه غښتلې اوزوړورو ۰

تاریخ شاهدی چه هونان تل دجرئت په مینه لیونی وو ـ اودا هم ځان ته څرګنده وه چه چانګ چن دجلګو په جګړو کښې په ډیر مهارت اوبوره زړورتیا جنګېدلی وو ۰

لنډه داچه چانګ چن له مرګ څخه خلاص شو ۰

لوشانګ دی رتېخوشی نه پر ې ښوده ـ مګر دهونانو په کمپ کښې دننه دېوره ازادی یې خاوندو ۰

په تېرېدو دمهال هونانو پر چانګ چن زیات اعتماد وکړاو ډیره ازادی یې ورته ور کړه ۰ دی دهونانو په یوه شهزادګۍ مین شو ۰ هغې سره یې واده

وکړ او اولاد هم ور کړه وزيږيده. له دې ځايه هونان به دې فکر کښې شول چه اوس نو چانګ چن واقعاً خپله ددوی له جملې څخه دی. همدا وچه د تللو را تللو او نورو ټولو هغو کارونو اجازه ور کړل شوه چه ددهٔ خوښ و.

هونان څو مره چه جنګيالي خلك وو هومره شوده ګان و و. داهپڅکله هم ددوی زړه ته نه لويده چه چانګ چن دې جاسوسي وکړي. مګر دا د چانګ چن اصلي کار و.

په بای کښې د هونانو هيڅ شی هم له ده څخه پټ پاتې نه شول. ده د هغوی مزاجو نه او عادات. دذخايرو منابع او د جګړې چم پوره مطالعه کړ.

چينايان به تل دې ته اريان وو چه هونان څنګه کولای شي په دو مره چټکی سره د لښکر د پاره لوی د پاره ځانونه تيار کړی.

چانګ چن ددوی په دې راز ځان پوه کړ. دوی به د پښو پر سر ژوند کاو.

کيږدی يې چه د ليمڅو او تختو څخه جوړې وې په يوه شيبه کښې وهل کيدې او کيدای شو چه په ډېره اسانتيا سره د نومو ړی قوم د کوچنيو ټټو ګانو په واسطه له يوه ځايه بل ته يووړل شي. دوی بر سيره پر وسلو او د پوښاك پر کالو ځينې نورا موال هم لرل چه په زينونو پسې به يې کنجوغه کول.

لنډه دا چه دا يو داسې پرشا سپور ملت و او له همدې امله به يې په ډېره اسانتيا سره وکړای شو چه لوېرې په اسيا او بيا په اروپا کښې خپل اسونه وزغلوی. دا ددوی دلاسه ډېره ښه پوره وه چه فقط په يوازې څو

د قیقو کښې خپلې کیښودې خېرې اوټولې کړې. چانګ چن داټول شیان د ځان سره نوټ کړل او د خپلې ینده استفادې دپاره یې وساتل.

چانګ چن د یو چیانو د شار خواسیمو په باره کښې هم پوره معلومات لاس ته ورنه ستل. دوه ورو سته د لس کاله بند څخه د هو نانو په باره کښې ټول هغه څه ځانته څرګند کړل چه یې غوښتل. مګر هو نانو د ده په برخه کښې داسې فکر کاوه چه دومره یې پېژندلی دی چه څارلو ته یې هم څه ضرورت نشته. خو کله چه ورڅخه وتښتېد هک اریان پاتې شو.

البته دا چه په دغه کار څنګه وکړ؟ تاریخ په دې باره کښې په تفصیل سره څه نه دي ویلي. ځکه په دې برخه کښې زموږ ټول معلومات یوازې دومره دي چه یوه شپه دی دخپلې ښځې - کوچنی زوی او وفادار مریی ټانګي فو سره یوې دښتې ته ورولو په دا وولاړ پخپله مخه پسې.

واقعاً چه په دې تګ ته موږ دوه زره کاله وروسته هم هومره اریان یو. ځکه هغه څوک چه یې دی بندی کړی و.

ایا ده څنګه وکړای شو چه یوازې د یوه بل سړي سره په داسې حال کښې چه ښځه او زوی هم ور په غاړه وو - بې له کومې څرګندونې څخه داسې یوه دښته کښې وخوځېږي چه سراو بر یې نه وو معلوم؟

هو نانو په دې امید چه هرو مرو به واړه دلوږې او تندې څخه و مري حتی تعقیب هم نه کړل. اما دا ځل ته بیا هم دوی په خطا وو.

چانګ چن بر سېره پر لوږې - تندې او یخنۍ شدید باد و نه او بې رحمه طوفانونه هم وزغمل. د بر کول Barkul او تورفان Turfan څخه

تېرشول او په پای کښې د تیانشان غرونو ته ور رسېدل. هلته دوی د قابیلنانو Ta-yiens سره مخامخ شول. هغوی یې د پرښه هر کلی و کړ او خپل گاونډي سلطنت ته یې په بنر گه سره ولېږل.

داخلك هغه خلك و و چه ستر سکندر له اکسوس «امو» څخه د تېر یدلو په وخت ماته ور کړې وه دوی چانګ چن ته د زړه لارښودنه و کړه او دا یې هم ورته څر ګنده کړه چه یوچیان چیرته او په کومه سیمه کښې اوسي همداو چه چانګ د اسیا په هغې برخه کښې چه د باکتریا «بلخ» په نامه یادیږي یوچیان و موندل. د یوچیانو پاچا د چینیانو د لیدلو څخه ډېر زیات خوښ شو. مګر د هغو د امپراتوری سره د تړون څخه یې انکار و کړ.

ده چانګ چن ته وویل: «موږ دې ځای ته پر خپلو پخوانو ځمکو ترجیح ور کوو دلته زمارعیت نیک مرغه او ارام ژوند لري. هونان مونږ نه ربړوی، موږ نه غواړو چه بیا د دوی پر ضد جګړه کښې ګډون و کړو» چانګ چن له یوې خوا مایوسه شو. مګر له بلې خوا د پاچا دلائل هم ورته معقول و بریښېدل.

چانګ چن د یوچیانو څخه د خپلې هستو ګنې په موده کښې ډېره زیاته استفاده و کړه او پوره معلومات یې ځانته حاصل کړل.

یوچیانو ده ته لري د جنوب خواته د یوه بل هیواد پته ور کړه چه موږ یې هندوستان بولو. د غه ډول یې د غرب لور ته د یوه بل ستر او مجلل هیواد څخه هم خبر کړ چه یوچیانو تاتسن Ta-tsin بالله او موږ ورته «روم» وایو. په رښتیا سره چانګ چن ته هغه څه څر ګند شو چه د مخه هیڅ یوه

چینی په خوب هم نه و لیدلی او هغه داچه د دوی ته معلومه شوه چه نه مرکزی سلطنت د نړی مرکزدی او نه دا چه د نړی یوازینی متمد نه سیمه . په نړی کښې نور خلك او هېواد و نه هم شته او هغه داسې هېوا د و نه او خلك دی چه د سنګ نو Hsiung-nu په څېر و حشیان نه دی . د یو چی پاچا ، چانګ چن ته وویل چه که یو چیان دا نه غواړی چه دې دچینا یانو سره دهونانو پرضد جګړې ته ورون و کړی نو دا خو په ډېره کلکه سره غواړی چه د دې سود اګری ورسره و لری . چا نګ چن په دې خبره هم خو ښ شو . ځکه دې پوهیده چه ددوی امپراتور یعنی وقې په دې خبره ډېر خوشبېږی . همداو چه دی له دې ځایه د یوځه شیانو سره مخ په کور روان شود اشیان عبارت و له انجرو تو - کو نځلو او دانګور تا کونو دقلمو څخه په مرکزی سلطنت کښې دمخه تر دې هېچا او هېڅکله هم داشیان نه وو لیدلی . دیو چیانو پاچا چانګ ته یو شمیر ز یا ت آسان هم ورکړل چه خپل امپرا تورته یې دده له خواد سوغات په توګه ور ورسوی . چانګ له هونا نو څخه دتېښتېدلو اوله دې امله چه دلیدلې لارې ټولې سیمې ورته څرګندې شوې دی دافیصله و کړه چه له دې خوا په کومه بله لار ولاړ شی .

همداو چه دی دتیانشان دغرونو جنوب ته دټا کلمکان Taklamakan دبید یاد شرقی پای دهغې سیمې څخه چه د تارم حوزه Tarim Basin نومېږی تیر شو .

دەسرەله دي چه پېژي هم ورېه غاړەووځان دلو پناردمالکې جلکوته ور بورساوه اوله هغه ځایه څخه بې دننشان Nan Shan دغرونو په غونډيو کښې لار وکړه مګر دلته بیا د هونانو ګیر ته ورغی . چانګ چن یوځل بیا په دي متیقن شو چه هېڅ مرو به و وژل شي . خود لته دي بیاهم په غلطه و . ځکه هونانو داپلاهم په جېل کښې واچاوه اومړیې نکړ .

چانګ چن یو کال زندانی و او وروسته له یوه کاله و چه خان لوشانګ Khan Lo Shung مړاووده دمرګ سره یې په پرګه کښې یو هر ګلېشو .

هیچاهم داخبره نه منله چه دي د لوشانګ پرځای دهغه کوم زوی پاچاشي . دهغه ي اخو ږب په منځ کښې وچه چانګ چن بیا دخپلې ښځې او زوی سره وتښتید .

دانکې فوهم دکونځلو اودامپراتوردا سانوسره همداسې وکړه .

کله چه چانګ چن دمرکزي سلطنت دربارته ورغی هېچاهم په ځای رانه وړ . دې دېږ دمخه لامړ ګڼل شوی و . ده ته حتی داخبره ډېره ګرانه وه چه دي وڅې ته خپل هویت ثابت کړي او داوي څر ګنده کړي چه دی هغه چانګ چن دی چه دیو چیانو دسلطنت څخه دخپل دیارلس کلنی سفرنه بیرته راغلی دي . مګر په پای کښې امپراتورقانع شو او هغه خبر ي یو ومنلې چه چانګ ورته کولي البته چانګ چن دامطلب چه یوچیان دي بیرته راشي او دهونانوسره دې وجنګېږي ترسره نه کړ . مګر په مقابل کښې یې نور ډېر له ارزښت نه ډك شیان امپراتور دپاره کشف کړل

اوا مپراتورهم دومره دشعور خاوند و،چه ددغوشیانو مننه و کړی ده داسیا یوه نامعلومه اووچه میره سیمه کشف کړه . دسیلیشیل Gestial دغرونواوفونډیونه هاخوا متمد نواقوامو سره یې دوستانه روابط ټینګ کړل . دهنداوروم څخه یې هم ځان خبر کړ اودهونانو په برخه کښې یې کافي معلومات لاس ته وروستل . دومره چه ده و کړای شو چه مپراتور ته دهونانو سره دجګړې دچم په باره کښې په عمومي ډول سره یو ډېر ښه فکرور کړي . دوی هـم داخبره هسې تېره نه کړه .

بلکه وتی چانګ چن دومره و امانته لراو وغتاوه چه هسې ستر نری یې ورڅخه جوړ کړ او پخپله کابینه کښې یې دخارجه چارو وزیر په حیث مقرر کړ .

په وتی پسې دهان دامپراتوري نور وسفیرانو هم دملاحظې وړ کشافي سفرونه و کړل . مګر دچانګ چن سفر تر ټولو څخه اوږداو مهم سفر و .

همدې د چین دمار کی پولو د سرله بر کته و چه چین د فتوحاتو او سوداګرۍ له مخې په ټوله اسیا کښې خپله اغیزه خپره کړه او په خپل وخت کښې یې - سره له دې چه یې هیڅکله هم د غرب سره مستقیم تماس نه دی لرلی- تجارتی مالونه اروپایی بازارونو ته ورسول . تر ښه مو- چینی او ښواو دواکانو سره یې آ ن دقیصر په وخت کښې درومي خلک اشناشوی وو .

هغه داوښانو کاروانو نه چه یې دغه قیمتي شیان وړل له شمال څخه غرب ته تلل او پارتیا اودهند سواحلو ته وروتل او له هغه

ځای ځخه به دغه ما لو نه عربی سو دا ګرواودروم اویو نان پلر و نګو
دمیلهٔیهٔرانې شاو خوالری سیمو ته رسول .

وروسته له دې کله که تاسو ته داسودادرپیداشوه چه یوشی غیر ممکن دی نودامپراتور وټې سفیرچانګ چن درپه‌زړه کړیء چه‌یې عقیده لر له چه نا ممکن کار هیڅ نشته او خپل ژوند یې فقط دهمدې خبرې دا ثبا ت دپاره وقف کړ.



# ټول واټونه روم ته ځي

« دا په هغه وخت کښې وچه قيصرا ګوسټس فرمان صادر کړچه بايد ټوله نړۍ ماليه ور کړي ... ټولو خلکو ماليه ومنله اوهرسړی خپل ښار ته ماليه ده شو. يوسف هم د جليله څخه ـ جودي يعنې د داودښار ته چه بيت الحم نوميږي ـ ولاړ. همدلته وچه دحضرت مريم دوضع حمل وخت راورسېد او خپل ديټکی زوی يې وزيږاوه هغه يې په اورنۍ کښې و نغښت او په يوه اخور کښې يې وغورځاوه اودا ځکه چه د دوی دپاره ځای نه و.»

په دې ډول حضرت عيسی ـ په بيت الحم کښې وزيږيد. دالو مړی عيسوی کال و.

قيصرا ګوسټس دروم امپراتور او دروم دنړۍ ناوې وه حتی د « خدای زوی » هم دروم ديوه تبعه په حيث زيږ بدلی و.

دا مهال د سکندر د فتوحاتو څخه دری پیړۍ تېرې وې. يونان په دې وخت کښې دروم يو ايالت و اود سکندر فتوحات يو ليدلی خوب. داوخت له فلسطين څخه ـ ترهسپانيې اوله مصر څخه تر برېټانيې پورې نړۍ ټوله دروم وه. روميان دخپلې سترتيا په شپوورځو کښې

ډېربا ثبا ته ـ او با د سپلینه خلك وواو د نړۍ ډ ېر تکړه جګړ ن ـ سیاستمـدا ران ـ انجینران اوحکمرانـان ور څخـه را ووتـل . د وی فوق العاده عملی خلك وو. دښکلاسره یې دومره مینه لرله لکه یونانیانو. دغه ډول دوی خپل ژوند د مجردو مسایلو په څېړلو او هغوته دځوابونو پهموندلو نه تیراوه . بلکه دوی تر هر څه نه زیات له دې سره ډېره مینه لرله چه خپل دورځنی ژوند مسایل حل کړی .

رومیانو دواقونو د جوړولو ـ د جرونو دا ېستلو ـ دپلونو د تړلو اود کرو ندود تیارولودښوطریقو دراېستلوسره ډېرهزیاته علاقه لرله .

البته داچه رومیانڅوك وواوله ارهله کومځایه راغلی دی په درست ډول سره هېڅوك هم په دې نه پوهېږی .

وایی چه روم دو و غبر ګولو ورونو ـ رو میو لس Romulus او ر یمس Remus چه دلېوګیډه پیه یې رودلې وې جو ړ کړی دی. وروسته رومیولس پاچهدهاوریمس یې مړ کړ. ځکهدوی دښاردجوړولو په نقشه کښې سره ور ان شول . رومیولس غو ښته چه ښاربه یو ه ځای کښې جو ړ کړ ی اور یمس غوښتل چه په بل ځای کښی .

ورو نه سره په جنګ شول اورو میولس ریمس وواژه اوروم یې په هغهځا ی کښې جوړ کړ چه همدا اوس بنا د ی .

د روم داساطیروسره سمرومیولس یوازېدروم جوړوونکی؟نه و. بلکه درو میانو لومړنی و اکمن هم و .

ګومان کېږی چهدروم ښاردهغو کوچنوتو کلیو دانکشاف په نتیجه کښې

جـوړشـوی و ی چـه دغه نیبر Tiber دسیند دغاړې دغونډیو دپاسه جوړ شوی وو . کله که تاسې دایټالیې نقشې ته ځیرشیء نوبه ووینیء چه شمالی برخه یې پرهغه سمندر Tyrrhenia په بحیره کښې ټوخیږی .

درومیانو نیکونه هم دنوروقوموله تینې اوایټالیایی پرګوبه څپرشپانه اوپووندهوو چه شمالی نژدې د ۱۰۰۰ ق م په شا وخوا کښې دایټالیې شبه جزیرې ته ورشوه شوی وو دوی دلته میشته شول( داسې لکه چه داچین پرګه Achaeans په یونان کښې میشته شوه) اودهغوخلکو سره یې ودونه هم وکړل چه په دې ځای کښې داوړې سره میشته وو داسیمه اوړی په پېلو پېلو برخوویشل شوې وه چه ری برخې یې ځانته پاچا لاره . مګروروسته په وروو روسره درومواوسیدونکی ترنوروقوواوخلکو څخه قوی شول اودخپلو ګاونډیانو سره یې جګړې خښې کړې .

تردر ۵۰۹ قبل المیلاد پورې څخه دمخه لاررومیانودپاچاپه مقابل کښې بغـاوت څرګـنـد کـړ او د جمهوریت په جوړ ولویې ګوتې پورې کړې جمهوریت یې د ژر جوړ کړاو دایټالیادپورې زیاتې برخې یې هم خپلې کړې . وروسته تر دې په دې پسې شول چه بایددنړی ترټولو نه قوی دولت تشکیل کړی .

دلرغونورومیانوژوند ډېر ساده و . کور نی ژوند ورته ډېر زیات ارزښت لاره دو چې سره یې مینه ډېره زیاته وه اودسمندر سره یې څه زیاته علاقه نه درله .

رومیانومتعددخدایان اما ددې ځل چه اکثر یې دبزګری د کارونو خدایان وو .

مثلاً سیرس Ceres ( هغه چه په انګلیسی کښې د سیریل Cereaul - غله - کلمه‌ور څخه اخستل شوې ده ) دمځکې الهه - وستا Vesta دنغری الهه‌ا وجانس Janus - چه یوه اشاوه‌او دوه مخه یې لرل - دوره خدای .

رومیا نو جانس د اسې رسم کړی دی چه ګوندې کولای شی ګذ شته اوا ینده دوا ړه وو ینی اوهم د وی په دې عقیده وو چه دغه خدای دهرقا تو بې په وره کښی دخاردیا ره ولاړدی.

په لومړی سر کښې دروميا نوا کثر د غه خدا یان مجرداوخیالی موجودات وو. ځکه رومیا نو دا فکرنه لاره‌چه‌دې‌خارجی‌وجودهم‌ورته وتراشی . مګر کله چه په تیریدو دمهال‌دیو نان له مستعمروسره‌دایټالیا په جنوب کښې - له نژدې‌څخه - په تماس کښې شول نویې په دې پیل و کړ چه خپلو خدایانوته تا کلی خارجی‌هو یتونه هم‌وتر ا شی .

رومیا نوډیر زیات یو نانی خدایان هم ومنل اوپه‌پا ی کښی ده‌ونې الیمپس Mount Alympus دېرزيات‌اوسيدونکی ایټالیې‌ته‌ولیږد یدل رومیانو خپل دجنګ خدای مارس Mars باله او ډیره زیاته اهمانځنه يې ورته کوله .

مارس د خپل جنګ‌اود ښند رودسوغات سره‌دوی‌ته‌دومره ګران‌و لکه اپو لا Apolla چه د یونا نیا نودپاره .

دا یوه‌ښکاره‌خبر ه‌ده‌چه‌انسانان‌خپل‌خدایان‌په‌هغوصفاتوموصوفوی چه‌دوی خپله خپل‌منځ کښې په ښه‌اودرنه‌سترګه ورته‌ګوری .

یونانیانو داستقلال او شکلا سره ډېره زیاته علاقه لرله او رومیانودزور اوقوت سره .

په مرور دزمان درومیولس ښارسترشو اورومیان په دې پسې شول چه قوله نړۍ ونیسي .

دعیسوي تاریخ څخه دمخه رومي جنرالانو په جګړه کوتې پورې کړې کارتاژ Carthage یې تر پښو لاندې کړ او هسپانیه او یونان یې و نیول.

شمال ته یې د ګال Gaul په لو رور مخه کړه اوحتی د Ch anne l څخه تېر شول او بریتانیا یې یرغل وروړ . کله چه ددې فتوحاتو غنایم روم ته ورجاري شول نو یې اوسېدونکی سخت بډایان شول .

لوړوطبقو باچاهي مېلې او چړچې شروع کړې او رومیو دمرمرو ښارشو. ښکلي عمومي عمارتونه ودان شول او ښار د بوتانو څخه ډك شو .

لرغونی یونانی ساده ژوندله یاده ووت اودبډایي اولټې ژوند موډ شو.

اماله بد مرغه چه بډایان لا پسې بډایان او غریبان لا پسې غریبان شول .

ځکه دغسې ا لکه په موږ کښې چه ده د فردي ثروت سره غربت هم ملګری دی .

همدا وجه دې کار یعنی د بډایانو لا پسې بډا ی کېدلو ډېرې نا رامۍ تولید کړې . خلك دحکومت په مقابل کښې یا ښېدل او غوغا وې پورته شوې .

بې کفایته سیاستمدارانود خپلې خود خواهۍ تر سره کولو دپاره دبېکاره خلکو دلوږې اور بڼ څخه استفادې و کړې .

دوی خلکو ته درایو دیاره دېږو ډېر سرکښونو او نورو هغو ګټو وعده ورکوله چه دوی بوهېدل چه هیڅکله یې هم درایو په مقابل کښې نه شوي ترسره کولای .

دروم د ستر جمهوري حکومت له منځه تلل دلید لو نه وو .

دمیلا دشخه دمخه پېړۍ کښې وضعیت داسې شو چه دوازي پو مقتدر او مطلق العنان سړی شوای کولای شو چه د دولت دې اداره کړي او رومیا نو ته فقط ژولیس سیزار Julius Caesar دغه ډول انسان و بر پښېد ژولیس سیز ارنه یوازې ګال Gaul او بریتانیا او مصر د روم په امپراتورۍ پورې وتړل بلکه په خپل حکومت کښې یې هم ریفورم را ووست او ډېر زیات نوی قوانین یې منځ ته راوایستل .

دقیصر په خت کښې دروم د جمهوریت دوره پای ته ورسېده او دروم دامپراتورۍ دور شروع شو .

قیصر ظاهراً هیڅکله هم امپراتورنه بلل کېده مګر بیا هم امپراتورو .

دی په ٤٤ ق . م کښې دروم دجمهوریت خواهانو له خوا چه غوښتل یې بیا په روم کښې جمهوریت ټینګ کړي ووژل شو . مګر دجمهوریت فکر بیا هم ناکامه او دقیصر وراره اګسټس سیزار Agustus Caesar د روم حکمران شو .

دهمدې اګسټس په دوره کښې دوچه رومیان سره یو او د خپلې وسیعې امپراتورۍ د قوانینو او داداري پهر یفورم پسې شول . دهمدې

اگوسټس په وخت کښې وچه عیسی (ع) وزیږېدې پېښې ته دغه وخت د روم په نړۍ کښې شماعتنا ونه شوه. مګر تقدیر داسې وکړه چه دی د ټولو بشري پېښو په جریان کښې تغییر راولي. د اګوسټس اداره ډېره عاقلانه وه او په لومړۍ اودوهمه پېړۍ کښې پر روم کښې کراره کرار ی وه. مګر له بده مرغه په دریمه او څلورمه عیسوي پېړۍ کښې د روم دنړۍ بدې ورځې بیاراغلې او په پای کښې امپراتوري تجزیه شوه. همدا و چه د لته نو زیاتی در وم عظمت د مصر او یونان په څېر فقط یو لید لی خوب و.

له پېړۍ چلوونکو نه نیولی ترجګړن - سوداګر - دسمندرغله کب نیوونکی - مبلغ - عالم او انجنیر پوري ټول خلك کاشفان وو. فنیقی کاشفان سوداګر وو یوناني کاشفان سوداګر - بېړۍ چلوونکي او پوهان وو. مګر دروم کاشفان جګړن او تر ټولو نه زیاتي انجنیران وو. کله چه د روم جګړنو نوې ځمکې ونیولې رومي انجنیران د سړ کونو دجوړولو او استحکاما تو د پاره د مناسبو مواقعو په موندلو پسې شول.

په رومیانو کښې د «هانو» او «پتیز» او سکندر په څېر کاشفان پیدانه شول. مګر ددوی جنرالانو او انجنیرانو د نړۍ په باره کښې زموږ معلوما ت ډېر زیات وسیع کړل.

داګسټس په وخت کښې رومي سړ کونه دامپراتورۍ له یونه تربل سره یوري ورسېدل دا چه: «ټول واټونه روم ته ځی» کومه پوچه ادعا نه ده.

رومي انجنیرانو پهلومړی سړ کښي داسې کونه فقط د جګړې نود عاجل حرکت په مقصد جوړ کړل . ځکه دامپراتورۍ دساتنې دپاره دقانونې قوتونو یوخوابل خواپه سرعت سره تګ ضروروو اودا خبره ډاټونو ډېره زیاته اسانه کړه .

رومي انجنیرانو خپلې وظیفې په دومره ښه توګه سرته ورسولې چه دډیرو هغو واټونو څخه چه هغه وخت جوړ شوي دي ترا وسه هم لااستفاده کېږي او ددې خبرې ډېرښه مثالونه په انګلستان کښي «سترشما لي واټ» او په ایټالیا کښي د «اپین» مشهور رواټ دی .

ددې واټ څخه دنړۍ په دوهم عمومي جنګ کښي امریکایي او انګلیسي جګړې نوا ستفاده وکړه .

ایاداد تعجب وړ خبره نه ده چه دې امریکایي جي - ای G. I. او یواس U.S ټانکونه د هغو واټونو د پاسه ولاړ شي چه سل پېړۍ د مخه جوړ شوي دي؟ البته تعجب دی، مګر داچه دغه کارشوی داهم یوواقعیت دی .

ترټولو نه مهمه لا داده چه موږ سره له دا خپل ننني ساینس او سره دانجینرۍ له دادومره مهارته بیاهم داسې سړ کونه کله نه شوجوړولای چه دې د اوږدونې دومره دوا ټونو سره برابر شي .

څرنګه چه رومیا نوهم دمصریانو په څېر د بحرسره څه علاقه نه لرله نوبې بحریه د خارجیانو په لاس کښي وه - خارجیان هم اکثر یونانیان وو او په هغو پېړیو کښي چه یې د روم په نړۍ حرکت کاوه، غو یونانیانو د ملاحظې وړ اکتشافات وکړل .

البته د یونانی بحر پیمایانو په زړه کښې دا نه وه چه د ې رومي واکدارانو ته نوي څمکې کشف کړي. حتی ددوی مینځ ترې هم ددې مطلب د پاره نه وې بلکه کوم شی چه دوی ورپسې روان وو هغه فقط ګټه وه او د روم دامپراتورۍ د عظمت په موده کښې په هیڅ شی کښې هم تر سوداګرۍ څخه زیاته ګټه نه وه .

سوداګري هم دا مهال د شرق سره وه اوسره زر - عطر - وریښم جوا هراو دارو چه د ختیځ څخه را تلل د غرب په بازارونو کښې یې مدام تقاضا موجوده وه . ترڅو پورې چه چېرته خریدار شته تر هغو پورې هلته داسې خلك هم شته چه د ې ځانو نه مرګ ته زړ کړي .

یونانی بېړۍ چلو ونکو - هغو چه یې د روم د تجارتی بیړیو نظام په لاس کښې و - دخطرونو سره مخامخ کېدلو او یاد ربړونو د ګاللو پروا د کالیو د ګران بلور لوړه مقابل کښې نه لرله .

څرنګه چه تاسې ددې کتاب په لومړي برخو کښې ولوستل د نیورخس د مون سون Monsoon بادونو راز کشف کړ چه د بنګال په خلیج او په هند کښې چلېږي . دغه بادونه د کال د موسم سره سم بدلېږي.

په ژمي کښې له شرق نه غرب خوا نه چلېږي او په دوبی او پسرلی کښې له غرب څخه د شرق خوا ته .

دا بادونه د سمندرا او وچې تر منځ د تودوخې د درجې د اختلاف محصول دي.

ګله چه یونانی سوداګر د مون سون په خصوصیت پوه شول نو یې له هغو څخه په مستقیم ډول سره له افریقې نه هند ته د تلو د پاره استفاده وکړه .

دوی به دمخه تردي چه دمون سون سره اشناشی دسمندر د غاړي غاړي سره تامل . کله چه دوی ددې برڅای چه دې له سمندر څخه ګردچاپېره را وګرځي داو کړای شوچه نیغه په نیغه ورڅخه تېر شی نو دې کار ددوي سفرونه سخت اسانه اوپه نتیجه کښي زیات کړل .

کوم سړی چه یې داومړی ځل دباره دغه دسمندر یون وکړ هغه یونانی سو دا ګر او نوموړی چلوونکی هپالس Hippalus دڅو لیسیزار مساصرو . دی دسرې بحیرې څخه دملابر Malabar ساحل ته ورپورې ووت. کوم سودا ګران چه دده په پله ولاړل هغوی خپل یون مخ دجنوب په لور اوږد کړ تر څو چه سیلون ته ور سېدل اودا په لسمه میلا دی پېړۍ کښي و .

څو کاله وروسته یوه رومی تجار چه سکندر Alexander نو مېده کو چین چین Cochinchina کشف کړ . دچین سودا ګر و له دېړې پخوا زمانې نه رایه‌دې خوا ددغې ځمکې دسودا ګروسره چه چانګ چن دیو چې قلمروته دسفر په وخت کښې اوریدلې وه تماس لاره . شرق او غرب سره ملا قي شول .

د دریمې قبل المیلا دپېړۍ په‌شاوخوا کښې یوه بل ولس ته چه چانګ ته شر ګندو . دغرب سره خپل تګ راتګ شروع کړ . داخلك سودا ګر نه‌وو . بلکه دوی یوازې دجنګ او چپا وسره علاقه ارله .

ددوی جنګو نه‌ارچپاوو نه رټ‌وحشیانه‌وو . حتی رومی مشهور یرغلګر یعني لیجین Legions هم ددوی دیرغل زورنه لاره .

ځکه ددې خلکو جنګ فقط ددېوانو جنګ وو .

داخلك څوك وو ؟ داخلك فقط هم هغه زاړه یاران ((هونان))وو .
هونا ن یعنې د مهیب « سنګ نو » یا هغه چا او لاد ه چه و رو سته
د پېړیودسر ګردانۍ څخه اروپاته وروړسېدل اودروم دامپراتورۍ سره
په جګړه شول . دهغې ورځې نه چه چینیانوبه دې پسې شول چه هونان
داسیادجلګو څخه بهر کړي دغرب پهلور ددوی بهیرونه ورلام شول .

چینیانو په هونان بیرته شړل او هونانو هغه څوك چه به یې
په لاره کښې اویامخې ته پراته وو . ترڅوچه په پای کښېدهونانو
سرارو پاته ورسېد . دلته یوڅه موده یه تنبه ټپله کښې رو اوډېرزیات
خلك د ډا نیوب د سیند په غاړه او دا رو یا په شما لی ځنګلو نو کښې
میشت شول اوهلته یې منظم ژوند شروع کړ .

داوحشي یرغلګر دډېروزیاتو ډرکو څخه جوړوو . مګر په عمومی
ډول سره یې واړه خلك ددنګوونو ـ شنو سترګو او ښکلیو وېښتانو
خاوندا ن وو چه ژوند یې په یووند ګلو ی ـ کښې تېر یده . د لیك
اولوست سره یې هېڅ اشنایی نه لرله فقط یوازې یوڅه محدودقوانین یې
لرل او نورنو ز یا ت قوي اوازاد خلك وو . د خپلواکۍ سره یې
ډېره زیاته مینه لرله

اورومیان دهغوخلکو دلاسه چه یې دامپراتورۍ په څنډو کښې میشت شول
په تنګ شول مګرسره له دې یې هم جنګ ته په جنګ ځواب ور کاوه
اوسولې ته په سوله . ترڅو یوري چه دروم امپراتوری په قوت کښې وه رومیان

ونه‌تر پېدل خو کله‌چه روم د ډېرې هستې اوراحت له امله ضعیف شو او دروم د سیزار امپرا توری تجزیه شوه نو د وحشی قبایلو تهدید شروع شو . دشمال اوشرق نه بهیرونه دروم د امیراتورۍ په لور ورلام شول .

لومړی ګوتان Goths اووزی ګو تس Visigoths او په پا ی کښې هونان اوو انهو الان Vandals وروررسېدل .

په ٤٧٦م کښې روم‌مانه و کړه اودرومیا نو وروستنی امپراتوروتښتېد .

په همه ي دیرغل د ډېر ی په پای کښې در وم د برم څخه چه څه پاتې شول هغه فقط وران ښارونه ـ ستراوازده و اټونه ـ پلونه‌او هغه تونلونه وو چه یرغلګرو ورڅخه‌استفاده‌نه شوه کولای . ځکه‌چه‌وحشی اوغیرمدنی خلك وو .

داچپاوهم داسې‌وو لکه چینیانو چه‌د« کریټ» تاپولوټ کړښارونه رنګ شول قوانین اوددونه له‌یاده ووتل‌او تمدن‌یوځل بیاځای‌پرځا ی وورېد .

د هغوعیسوی کلیسا ګانو له بر کت‌څخه که‌نه‌وی چه د رومیا نو دامپراتورۍ په وخت کښې‌جوړ شوی‌وو نو تمدن به‌رټ‌له‌منځه‌تللی‌وای . مګر عیسو ی راهبا نو په کلیسا کښې دومره یو څه علم له ځان سره ساتلی وچه یې‌خپل وروستی نسل‌ته وروسپا ری .

رښتیا ده‌چه دروم دېو هنې ډېرې ز یاتې‌ذ خیرې د لاسه وو تې . ډ ېر ې‌هېر ې‌شو ې. ډېر ې‌محوه‌شوې . اما ځینې‌هم وساتل‌شوې .

همد ادیوهي پاتي برخه ده چه زموږ خپل تمدن پري بناشوی دی.

د پېړيو پېړيو د پاره اروپايو د جهل سمند رو . دنا يو هوا وه وهرم پرستو ځنګليا نود تفکر طرز بيادنړی ، څخه بشقاب جوړ کړ . داسی بشقاب چه فقط بلا وي او اشا وي يکښي هستي وي .

خبره بيرته دې ځای ته ورسېد ه لکه فنيقيان - يتيز - سترسکندراو رومی سلسله چه هېڅ نړی ته نه وي راغلي .

ځنګليانو چه تولو له نړی يي ونيو له برته دخپلي برکې - خپلو رمو - خپلو کښتو نوا و خپلو هغو کليو څخه چه يکښي اوسيد ل د بل هېڅ شی سره هم څه د لچسپی نه ار له او نه په بل څه پو هېد ل .

په تاريخ کښي دامهال دتياره عصر Dark ages په نامه يادېږی او له ۵۰۰ ع څخه تر ۱۰۰۰ ع پوري رسيږي .

ددي دو رې په ا کثره موده کښي اکتشافات متوقف وو . وروسته د ۱۰۰۰ ع په شا وخوا کښي يو ه ډېره يا رو ونکي پېښه وشو ه او هغه دا چه و کنګانو Vkings امريکا کشف کړه .



# د شمالي سمندر پاچايان

دهغو ځنګلي قبيلو څخه چه يې په تياره عصر کښي اروپا ته ور وردانګل او هلته ميشتي شوي يوه هم دنارس من Norsemen يا وکنګز Vikigs په اندازه له منځه وتر پورونه وك تاريخ نه لري .

داخلك هم له اره دهغه نژاد څخه وچه ګوتان او فرانکان Franks او نوري جرمني پرګي هم له هغه نژاد څخه وي .

مګر په مرور د زمان د برشمال High Nor th خوا ته چه فقط ددوي دپاره جوړو ، خپاره شول .

د وکنګ نوم د لرغو ني نارس Norse دوك Vik د کلمي څخه چه معنا يې خليج دي مشتق شوي دي اوو کنګان رښتيا هم دخليج خلك وو . دا نوم د هغه هيواد د پاره چه يې د سمند رغاړي د اري په شپر دندانه دندانه دي و اقعاً يو منا سب نوم دي .

و کنګان په لو مړي سر کښي فقط دمعاش تحصيل د ي ته اړ کړل چه سمند رته ور ننوزي . خو دسکانډ نا ويا ګڼو ځنګلونو اودغرونو اړ ونو د و ی ته مشکلا ت تو ليد و ل .

له بلې خوا سمند رد کبانو او داسې ځنګلو نو شخه ډك و چه الو ارونه ورشخه لاس ته را تلل .

همداسبب شوچه و کنګان تکړه کب نیوونکی اومانړو ګان شول، نه شپانه یابزګران .

دغه ډ ول داهم طبیعی وه چه دې له دوی شخه دسمند رغله او تالا کوو نکی جو ړشي .

دوی دسمندرسره ډ يره ز يا ته مینه لرله اوماجراجو بی يې په خټه کښې اخښل‌شوي وه .

په تیاره عصر کښې هيڅ و اس هم دو کنګانو په انداز ه و يرو ونکی نه و .

دوی په خپلو کړ ندیواوښکليو بېړ يو کښې مخ ښکته راشيوه شول ترشوچه داروباشندې چوراوچپاو کړی .

و کنګانو دسین Sein رین Rhine اوالبی Elbe په سیندونو کښې لاره وکړه او همداسې يې خپلې بېړۍ ښکته داتلا نتيك سوا حلو ته ان هسپانیې اومیډ یټرانې ته وررسو لې .

د ځینو شوا هدو شخه شر ګندېږي چه دير غلګری‌يو نو نو دوی د غربی افریقې سوا حلو ته هم رسولی دی . دغه ډول‌شوا هد ښيی چه يې يوشو بری اکتشافی‌هیأ تونه دروسیې شخه تېر شوی او توري بحيرې ته هم رسېدلی دی .

و کنګانو دشمالی اتلا نتيك جزايرلوټ کړل او په بریټانیااوشمالی فرانسه کښې میشته شول. ایسلینډ Iceland او ګرین‌لینډ Greenland يې

کشف کړل او په پای کښې ـ تو کلي ـ امریکې ته ور ورسېدل .
و کنګان شپاپې یوازینی خلك وچه د فنیقیا نوشخه وړاندې ولاړل . دوی
په بحر پیمایی او دسمندر په غلا کښې بې ساری خلك وو . د خپلوا کۍ
سره یې ډېره سخته مینه اړله او په هغو ټولو کښې یې ژوندون و چه
پرسواحلی سیمو کښې خپرې پرتې وې له دغو ټولنو شخه هرې ټولنې ځانته
یو پاچالاره . که څه هم چه ددغو ټولنو حکومتونه سره جلاجلا وو خو دعمومی
عادت او دود له مخې سره نښتی اوبووې . لنډه دا چه هم دوی هم په داسې
یوه فډریشن کښې ژوند کاوه لکه دا زموږ (امریکایانو) نننی فډریشن .

خلکو تل پر حکومت باندې دغېږ ډېرلو حق لاره . د ټولنې ټول هغه
خلك چه یې ځانته ځمکه اړله په یوه جرګه کې چه تنګ Thing بلل
کېده سره راټولېدل او ددې جرګې غړی تنګ مِن Thingmen بلل کېدل .
پر ته دجرګې دغړیو دخوښې شخه هیڅ مشر هیڅ ډول فیصله هم نه شوه
کولای . و کنګان دنورو په مقابل کښې دومره زیات دقانون پابندنه وو .
مګر په خپل منځ کښې یې سخت قانونی ژوند لاره .
دوی به تل ویل : « باید چه زموږ خاوره په قانون ودانه شی .
نه دا چه ددې قانونی له امله ویجاړه شی . »
دقانون دما تولو سزا فقط یا مرګ واو یا تبعید .
دو کنګانو رب الانواع فقط دیوه جګړن ولس رب الانواع وو .
اوډن Odin درب الانو اعو پاچا اوټا ټو بی یې دو لهلا Valhalla
مانی په اسګرد Asgard کښې وه

اسکرد دو کنګا نوجنتو . و کنګان په دې عقیده وو چه مړی د زرغونی پرپله جنت ته ور تیریږی . که څه هم چه په تګ سره په پای کښی ټول خلك ـ ددوی په عقیده ـ اسکرد ته ځی ـ خو یوازې یو څو تنه غوره غوره کسان داړن سره په ولهلا کښې هم اوسیږ ی . ځکه و کنګا ن په دې عقیده وو چه یوازې زړور جګړن دد ې د ی چه دې داړن تر څنګه کښیني. دا کسان داړن مینځو یعنی هغو شپیز ود جنګ ا لهوا نتخا ب کړی وو چه دو کنګانو په اسمانو کښې پرسترو سپینو اسو نو سپرې ګرځیدې. دا الهی دو الکیریز په شکلې نامه یادیدې اوو کنګانو ویل چه کله چه دوی سپرې شې نو یې نیزې اودزغرو خولی لمر ته بلك وهی او اوږده طلا یی ویښتا ن یې با در یږ ی.

کله چه و کنګا نو جنګ کاوه نو والکیریز به سپرې شوې. داسمانو نو څخه به په د ې نیت را کو زې شو ې چه مړی سره را ټو ل کړی او اسکرد ته یې ور سو ی .

دو کنګا نو دپاره په جګړه کښی مر ګ دپرسترافتخا رو. د ې عقیدې دوی ته دومره جرئت ور کړ ی وچه یې په شما لی سمند ر کښی خپلې بیړ ی سیخې کړې او داروپا په سواحلو کښی یې بې پایا نه جګړ ې ونښلولې. و کنګا نو دوه ول بیړ ی لر لې چه هم یې دا ندازې له مخې فرق سره لاره او هم دجوړ ښت د ډول . دا بیړ ی ځینې دسودا ګری په مقصد جوړ ې وې او ځینې د کب نیولو او د سا حلی سفرو نو په نیت. مګر تر ټولو نه شکلې تیزې او له دبدبې څخه ډ کې بیړ ی جنګی بیړ ی وې.

جنګي بېړۍ دوې ښامار ډوله بېړۍ بللې اودا ځکه چه دد غو بېړيو دمخه خوا ښامارته ورته وه. پورته خواو ې يې ايندې ته ورته جوړې وې اوپای يې د ښامار لکۍ ته ورته و.

د غه ډول دا بېړۍ ډېرې نرۍ او پېتې وې . کيلو نه يې هم ارل اوډېرې دسکرو دشيرې د ځوښا شخه جوړې وې او په پای کښې يې پولوړ دا لا ن هم لاره. دلته به په دې ځای کښې کېټا ن در پده اوبېړ ی به يې چلو له . پرته ددا لا ن شخه ، چه يې سر بو ښلی و نوره بېړ ی سر خلا صې وه.

دې بېړيو - پواز ې پوبا د وان لا ره چه يابه د کوم او بد لی ټو کر شخه جوړ شو ی واوياد کوم څاروی د پرېړ پو ټکی شخه چه په رنه و رنګو نو به پټاره پټاره رنګ شو ی وه دغه ډول په بېړ ی کښې يوه بله پوزه هم جوړه وه چه به د څارد برج کا رور شخه دا خستل کېده او وسله به هم دهغه ځای شخه استعما لېد له .

دا جنګي بېړۍ به له څلو پښتونه تر پنځوسو پورې پارو و هو نکو اداره کولې . پارو ګا ن به د شپېړۍ شخه جوړ اود بېړيو په شنګو نو کښې به په څرمينه ټينګ شوی وو. هر پارو به دد وودرې پاڅاور تنو په واسطه اداره کېده. ښی څنګ ته يې يو سکان rudder جوړ واودبېړۍ دد پوالو نود پورته شنه وسرترسره به جګړ نوخپل ډالونه ځړ ول .

دور ځې له مخې به و کنګا نوخپلې بېړۍ دلمر په لا رښود نه چلولې اود شپې له مخې د شمال د قطب د ستوری په اساس. کله به چه ساحل ته

ووتل نو به په کوډو کښې ننو تل او یا به یې همدا کوډې د ترپال په څېر پرېښې ي‌دوا چو ل. همدا یواز ینې پو ښا ك وچه دو ی د باد او با ران په مقا بل کښې‌د ځان دسا تنې د پاره لارد .

حتی کله‌به یې چه په‌ژمی کښې‌هم په‌سمندرونو کښې ېېړی‌ چلولې پر ته د همد ې کو ډ وڅخه یې بله داغوستلوو سیله‌نه ارله .

دلرغونو نار سا نود سندرو څخه چه دو کنګا نوسازیانو د سردارانو په میلمستو نونو کښې یې غېږو لې دی‌موږ ته د نار سمن د ژوند اودهغو د منځوترړوپه باره کښې ډ پر زیات معلو ما ت لا س ته را غلی د ی .

داسندرې په او مړی سر کښې سینه په سینه اه یوه نسل څخه وبل ته وررسیدلې دی . مګر یو وخت‌ددوولسمې پېړی‌به شاوخوا کښې کښل شوې‌دی‌اودتاریخ پوهانودپاره داطلاعا تو مهم مأ خذ ګر ځېد لی‌دی.

په لومړی سرکښې‌خلکوداسې فکر کاوه چه ګوندې دغه سندرې هسې دخیالی ماجراګانو کیسې دی . مګرپه تد ر یج سره ـ کله چه علوم پرمخ ولاړل داومنل شوه چه د غه سندرې څه خیا لی کیسې نه دی بلکه دوا قعی پېښو شرحه ده .

دعبرا نیا نود کتاب څخه چه ( په اصل کښې ددوی تاریخ دی ) هم دو کنګانو ژوند پېښې څر ګندېد لای شی .

البته موږ دامنوچه‌پور ته ذ کرشوې‌سندرې « Sagas »دخپل‌ټول‌شرح و بسط سره د رستې نه دی مګردا هم منوچه ښا یسته زیاته بر خه یې درسته ده .

ددغوسندروڅخه مو ژ ته دو کنگا نو یر غلونه چه یې په ځنځیر شپیږمه‌او - اومه پیړۍ کښې کړي دي شر گند یږي .

شر گنده‌ده چه په نهمه‌پیړی کښې په فیرو Farce ار کني Orkney دهبرایډټاپوګانو Hebride Islands او په پای کښې په‌ایس لینډ کښې خلك میشت‌شول . نژدې د سلو کلونو په مو ده کښې د ایس لینډ خلك سخت په‌غوره کښې وواو بیاپسې په ۹۸۱ کښې په بلا ککړشول . دا بلا فقط له‌یوه‌سړی څخه‌راولاړه‌شوه‌چه‌سور ایریك Eric the Red نومېده داسور ایریك له‌اره په‌ایس‌لینډ کښې نه‌وزیږېدلی ، بلکه‌یومهاجروچه‌دناروې څخه تبعید شوی و .

دې سړی سخته له شوره ډکه روحیه‌درلوده اوهیڅکله یې هم چېرته د کرارۍ ژوند نه و کړی . ده په ایس‌لینډ کښې پښه نه‌وه‌ایښې چه بیا له خپلودوو تنوجنرالانو سره په جنګ شو . همداوچه بیایاغی‌اودرې کاله‌تبعید شو .

په هغو سندرو کښې چه دمخه یې‌وغږېدو راغلي دي چه : « دلته ده‌دایریك په‌خلیج کښې Eric Bay خپلې پیړۍ دسمندرد باره تیارې کړې . کله چه تیارشو نو دتلو په وخت کښې نور خلك د جزیرې ترپایه پورې دخدای پامانۍ دپاره ورسره ولاړل . ایرك ورته وویل چه دی غواړی دسمندرڅخه‌دغرب خواته تېرشي اود . . . .

ملګرې په نیت سفرو کړی . . . . . . . . ده وویل چه که یې ځمکه ومونده‌نو به بیا دخپلوملګروسره‌په خیروویني . »

ایرلک ځمکه و موندله‌او کله چه‌یې دتبعید دوره سرته ورسېده بېرته ایس لینډ ته راغی‌ترڅو ایس لینډ یان په‌دې خبره خبر کړي .

« دغه ځمکه چه‌یې‌وموندله ګرین لینډ Groenland (Greenland) وبلله . ځکه ده دافکر کاوه‌چه که‌دغه ځمکه یوښکلی نوم ولري نو به دخلکو سره دورتګ ارزو پیدا شي . » په دې ترتیب ګرین لینډ یعنی سمسو رې ځمکې خپل دغه عجیب بې مناسبته نوم وګاټه او دا یرک چل هم خپل کار وکړ . ځکه کله‌چه‌دی بل کال بېرته ګرین لینډ ته ولاړ‌نوره پنځه ویشت بېړ یې و رسره وې . مګر یوازې څور لس له دغو بېړیو څخه بندر ته و رسېدې . ځینې یې په سمندر کښې له منځه ولاړې . نور یې بې چه دسمندر یو‌ن یې‌زړه ورمات کړ بېرته‌وګرځېدې اوښکاره ده چه پاتې یعنی هغه کسان هم مأیوسه شول چه یې هلته شنه ورشوګان ونه‌موندل اما سره‌له دې هم دایرک پر ځمکه میشت شول اومېنه‌یې‌ودانه شوه . و کنګان‌داتلانتیک‌ترنیمایي‌بورې‌رسېدلي‌وو .

مګر‌دهغې وچې فکر لاهم نه وورسره پیدا شوی چه ددغه سمندر هاپلې خواته پر ته وه . یوه ورځ یو نفر چه بجارنی Bjarni نو مېده په بېړ یې کښې د نـاروې څخـه ایس لېنډ تـه ورو خـو ځـېـد . ترڅو خپل پلار ، چه یې فراری ژوند کاوه ، وو ینی . اما‌دی فقط داسې وخت ایس لینډ ته ورورسېد چه ورته وویل‌شوو‌چه‌پلاریې ګرین‌لینډ‌ته تللی دی .

بجار نی سخت مأیوسه شواوافرادو‌یې هم ورته وویل :

« با داره ! اوس به څه کوو ؟ »

ده ځواب و رکړ:

« که مې یوازې نه پر ېږدیء اوملګر تیاراسره کوي، نو خپله بېړۍ ګرین لینډ ته پسې ورځو م . »

دوی په ځواب کښې ورته وویل :

« موږ د رسره یو ! »

بجارنی بیا ورته وویل :

«ګومان کوم چه زموږ یون بې عقلي ده . ځکه دمخه تردې موږ هېڅ یو هم د ګرین لینډ سمندرته نه یو ورننوتی . » مګر دافرادو یې چورت هم نه شو خراب . البته داځه او مړې پلانه وه چه و کښګان نااشناسمندرته ورننوتل . تر تیبات یې ونیول او بېړۍ یې سمندرته وروغوځولې . خووروسته له درې ورځو نه موا فق بادونه ودرېدل اودشمال له لوري ډېره سخته سیلۍ راوالوته ، اوفضاغبار وېچله . دشمالي سمندرغبار هغه مهلک تیاره اوټینګ غبار وچه پټیزیې وو پراوه اودې ته یې اړ کړ چه تیول Thule ته خپل یون پر ېږدي .

داغبار دسمندر پر مخ داسې غوړېدلی ولکه کومه لنده شړۍ اودوی به شپو شپو په دې هېڅ نه پوهېدل چه چېرې روان دي . دوی خپل ځانونه فقط دسمندرد خپور رحم ته سپارلي وواو کوم کار چه یې دلاسه کېده هغه داو چه فقط کرار په انتظار کښېنني . په پای کښې یو ګڼ غبار کښېناست اولمر ښکاره شو . وکښګانو خپلې بېړۍ روانې کړې .

اولاړل يخچاله مخه پسې . دا ورځ يې ټوله ورځ پېړۍ وچلولې او فقط ډلمرلوېده مهال يوه وچه ورترستر ګوشوه بچارنی هغوټيټوغوندېوته چه په اوافق کښې څرګندې اوېه واورونو ټپ وي ډېر زيات وخت څېرشو او وي ويل :

« ګومان نه کوم چه دادی ګرين لينډ وی ! »

هم دا وچه وکنګان ددې وچې له شېږ خواشخه تېرشول او خپلې پېړۍ يې وړاندې پسې رواني کړې .

بله ورځ ماز ديګر مهال وچه وکنګانو ته بيايوه وچه ورترستر ګوشوه او وي ويل :

« داهرومرو ګرين لينډ دی . »

مګربچار نی ځواب ورکړ :

« ګومان نه کوم . ځکه وايي چه په ګرين لينډ کښې ډېر سترستر يخچالونه موجوددی . »

« صاحبه ! ددې وچې لوړې هم فقط يخچالونه اوغرونه دی »

« ايادايقيني ګرين لينډ نه دی ؟ »

بچار نی خپل سروخوځاوه اوسره له يخچالونو بيا هم په دې متيقن نه و چه دا ګرين لينډ دی . نو يې ځکه وويل :

« په دې ځمکه کښې دمېلمه چاره نه کېږی . بايد چه پکښې ښکته نه شو . »

وکنګان مأيوسه وو مګر د خپل کپتان له امرڅخه يې سر نه خوځاوه

دوی دهمدي نوي وچې غاړه ونیوله اوداورته شر کنده شوه چه دا فقط یوتاپوو. بیایې دبجارني دامرسره سم بادبانونه خپاره کړل. دبېړۍ یو سینې یې ساحل شخه جلا کړي اوسمندرته یې وروغور ځولې.

څلورور ځې وروسته ښې هوا وموافقو بادو نودوی ته بیایوه نوي ځمکه ورترسترګو کړه. دله بجارني وویل:

« کومې خبري چه ماته شوی دهغو له مخې داځمکه ګرین لینډ ته ډېر زیات ورته والی لري. دلته باید پیاده شو.» کوز شول او همدا ګرین لینډ و.

بجارني وروسته له ډېرزیات رخت شخه خپل بلار ومونډ اونوي وچې یې هم وموندلې. مګر کله چه ده ددغو وچو په برخه کښې په غرب کښې خبري و کړې نه‌ده، نه یې بلار،نه یې کوم بل اوږ یدونکي داسې څه انګرله چه وشه‌دامریکې د کشف په باره کښې‌ورته‌خبرې کېږي بجارني بیاهم څکله هم د « غرب » دځمکو په موندلو پسې نه ووت.

دی خودل سرده ښکاریده مګر هغه نور ډېر زیات خلك چه‌یې دده کیسه واوریده. هغوی‌دل‌سرده نه‌وو . په‌دې ډېرو زیاتو خلکو کښې یوهم لیف Laif دسره ایرك زوی و . داشنار چو فکر دی راو پاراوه داسې چه که بجارني غرب‌ته‌یون‌نه‌وی کړی نو بیا دې هرومرو ورکله شوی واو دابه یې کتلی وچه څه مومي!

لیف والداپرك یو ټیك و کنګ یعنی د لوړې ونې او سپینې بڼې خاوند اوله باور نه وتلی غښتلی سړی و . وایی چه د ی ډېر ښکلی

ځوان ـ ستر لیهر ـ ټکړه مانهو اوهو ښیار او مبتکرانسان و. ظاهراً دی دخپلوخپلوانو پـهخیر تریخ نـه و. دی بـه دې پسې شوچه په یوه سمندریزا کتشافی یون پیل وکړی. مګر دملګرو موندل لبز څـه ورته ګران و. په بای کښې پنځه دیرش کسه ورسره ولاړل اود دوی دیون کیسه دو کتګانو په زړو اساطیرو کښې داسې را غلی ده.

«لو مړ نیړ و چه چهدوی وموند لههغه ځمکهره چه بجارنی دمځه موندلې وه دوی ددې ځمکې خواته خپلې بیړۍ وررواني کړې. لنګرو نه یې واچول اویوه بیړۍ یې وچې ته وروړسو له.

مګر هلته هیڅ شنیلی ور تر ستر ګو نه شو. څه چه په دې وچه کښې لیدل کېدل هغه فقط یخچالو نه وو ـ او د دوی تر منځ ځمکه او بحیره کټ مټ دیخ جلګهره . . لیف وویل: اوس نو موږ د دې وچې په بر خه کښې باید داسې و نه کړو لکه بجارنی یعنی هغه څوك چهساحلته ورنهغی زه بهدېځمکهنوم ږدم اوهیلو لینډ Helluland یې بو لم. دوی بیا سپاره شول. بېړۍ یې سمندر کښې لاهو کړې او یوه بله وچه یې وموندله ځانونه یې وروړسول. لنګرونهیې وغورځول. یوه بیړۍ یې وروړاندې کړه او پیاده شول. داځمکهاواره او پرځنګلو نو پټه وه.

ساحل ټیټ او په ا کثرو برخو کښې په سپین ریګ پو ښلی و. لیف وویل: دا ځمکه باید دخپلو شتو پـه نامـه یاده او مـارك لینـډ Mark Land ـ دلرګیو ځمکه ـ و بلل شی.

دېرې بیا په هومره چټکئ چه یې کولای شو په بېړۍ کښې سپاره شول. بیا دوی بېړۍ شمالي باد ونو ته وسپارلې او دوه ورځې یې دمخه تر دې چه دې کومه وچه ووینی سفرو کړ.

همدا سې د دغې وچې پرلور ورروان شول تر څو چه یوې جزیرې ته چه د دغې وچې شمال ته پر ته وه ورورسېدل. په صافه هوا کښې پیاده شول او وایسته راایسته یې ستر ګې وغړولې.

دشنیلې دپاسه یې دپر خې څاڅکي ولیدل - لا سو نه یې پر ې تېر کړل او بیا یې خپلو خولو ته وروړل. دادوی ته داسې وبرېښېدله چه ګوندې په ژوند کښې یې تر پر خې څخه خوږ شی نه و څکلی. له دې ځایه بیا سپاره او په هغه کانال ور ننو تل چه د جزیرې او د ماغې ترمنځ پروت و او دوچې څخه دشمال خواته تللی و دوی د دماغې څخه دغرب خواته ور تېر شول. هلته او به ډېرې لږ وې او بېړۍ په خټه کښې کښېنا سته. کله چه یې بېړۍ کښېناسته او دتګ څخه پا تې شوه نو یې خپله کو چنۍ بېړۍ پسې وتړ له او جهیل ته یې ور و کښول. هلته یې لنګر و نه وا چول. خپل دلامبو ژې یې واخستل او ځانو نه یې وچې ته پرې ور سول. په وچه کښې یې څه کوډ لې د ځانو دپاره و دانې کړې او په پای کښې یې فیصله و کړه چه باید ژمی همد لته تېر کړی. نو له دې امله وچه یې ستر ستر کورو نه ودان کړل.

دلته نه په سیند کښې دسا لمن Salman (یوډول کب) څه کمی و او نه په جهیل کښې.

دا کبان ددغه جنس ترڅولو هغو انواعو څخه ښه ووچه دوی لیدلی وو .

ځمکه دو ښو څخه د ومره ډ که ور ته بر ښیېده چه یې در مود ژمی دشو مې دپاره انبار ونه هم ضرورونه ګڼل . هلته او به نه کنګل کېدې او په ژمی کښې وښو خپله تازه ګی ډیره لبز با یلله .

شپې او ورځې تر ګرینلینډ او ایس لینډ څخه هلته زیا تې سره برابرې وې . کله که په ځیرسره نقشې ته و ګورو نو به تاسې د امر یکې د متحده ایالاتو او کاناډا هغه برخې وویني چه زموږ به فکرو کنګا نوو موندلې .

هیلیو لینډ Helluland چه معنا یې «د پلنې ډ برې ځمکه» ده هرو مرو د لبراډ ور Labrador کو مه برخه وه .

مارك لینډ د تشر یحـا تو له مخې نو وا سکو تیا Nova Scotia غوندې بر ښېږي. مګر ها خوا بر ته جزیره یې هرومرو د شهزاده اډوارډ PrinceEdward جز یره وه .

ځینې مؤر خین پـه دې فکرد ی چه هغه ځا ی چـه نارسمن مېښې پکښې ودانې کړې او ژمی یې پکښې تېر کړ هغه کیپ کاډ Cape Cad دی.

په هرصو رت لیف دامر یـکې د غه برخه له د ې امله چه انګو ر ډ ېر زیات پکښې شنه وو ـ واین لینډ Vinland یعنې دانګور و ځمـکه و بلـله. دو کنګا نوله ډلې څخه یو ازې یو تن دمخـه هم ا نګور لیدلی وو. دی هم دمخه فرانسې ته تللی او «لیف» ته یې د هغو میوو په باره کښې کیسې کړې وې چه یې هلته لید لې وې .

لیف د پرخو ښ شواووي ویل :

«اوس موږ با ید دوه کاره وکړو . یوه ورځ بایدانګور ټول کړو او بله ورځ باید ونې وباسو چه زه یې خپله بېړۍ کښې راسره واخلم »

ګرین لینډ یان خلاف د خپلو نا رو یژ ی نیکونو په ونه لنډ وو دوی ته ددې نوې ځمکې ځنګلونه د پېرښه پنا ځا یونه وو .

ځنګله چه بسرلی شوو کنګان مخ په خپلو کورونو وخوځېدل سفر خطرنا که و . خو په خیر یرې تېرشو وایې چه د همدې بېړ ته تګ سره و چه لیف دلومړی ځل د پاره « نیمه کرغه » و بلل شو مګر له بده مرغه چه ژوند وفا ورسره ونه کړه او به هغې خطرناکې ناروغۍ چه په همدې ژ می په ګر ین لینډ کښې که وه هم دی مړ شو او هم یې پلار «سورایرک» .

بل کوم سړی چه امریکې ته ولاړ هغه تار و اله Thorvald د سره ایرک یو بل زوی اود لیف کشر ورور و .

تارو له مخا مخ واین لینډ ته ولاړ او داسې ښکاری چه پر ته له کوم ربړ شخه یې داځای وموند .

وروسته له تا رو له شخه د کارل سف نی Karlesfniوارد ی . زموږ په فکرد ی د ۱۰۰۳ په شاوخوا کښې د« اوږدې ځمکې» Long Land په کومه برخه کښې کوز شوی دی خلاف د هغو ځینو نورو کسانو چه د مخه تر ده شخه تللی وو مخامخ واین لینډ ته د مستعمرې د مو ند لو په فکر ور غی .

ده یو سل و شپېته تنه سړی- پنځه ښځې اود ګلواو رمو شخه یو ه یوه جوړه د ځان سره وا خستل .

وکنګانو وا ین لینډته‌درسېد لوسره همد سمندر په غاړه یومړ«ویل»
( یو ډول بحری ځناور ) و مو ند او سم دلاسه یې دخو ړو لود پاره
ټوټه ټوټه کړ .

رمې چه‌د ګرین لینډ څخه په ډېر احتیاطسره‌را وستل شوې‌وې دځې
دپاره‌ایله شوې‌اود مستعمری خلك دراتلو نکی ژمی دپاره د انبار ونو
او کورونو په جوړولولګیا شول . د هواو ضعیت دا سې نه ښکار پد ه
چه‌دې ژمی سخت وی دخورا ك شیان په وچه او سمندر کښې زښت
زیات پیدا کېدل‌اودهغو خلکودپاره چه د ګرین‌لینډ د سړو سره‌عادی‌وو
د نیوانګلینډ New England ژمی ر ټ نرمو .

هغه ځه چه ورو سته دلرغونو انګلیسی‌سا کنینودپاره ساړه بر ښېدل
دو کنګا نود پاره نرم او ګرم وو .

کارل سف نی ارده ملګروته په‌امریکا کښې‌دخپل توقف‌په لومړنی
پسرلی کښې‌دا خبره‌ثابته شوه چه د« غرب» ځمکه مسکونه‌وه. دهمد وی
روایت دی‌چه یوزیات شمېرسکری لنګجر Skraellingjer د ځنګلو نو
څخه، د ما لونو دپلرولو اوپېرودلو په نیت راووتل سکرنی‌لنګجر ښایی
هند یان وو. دوی پوڅکی را وړی ووا وغو ښتل‌یې چه یې دو سلې‌سره
تباد له کړ ی. مګرو کنګان هوښیار وو، دوی په‌دې پوهېدل چه وسلې
یې‌د ټو لې نړۍ تر ګېد ړواو سمور ونو څخه‌زیات ارز ښت لاره .

همد اوچه یې هند یانو ته شید ې- کوچ- خا ید ك‌او‌پېروی‌ور کړ.
هند یا نو د مخه تردې‌هېڅکله هم د غه ډول‌خورا ك‌نه ولید لی‌او‌څکلی

نو لهٔ ئې املهٔ یې خپلې خپلې ښځې پرې وپرېسولې . خپل ښکلی پوټکی یې په بدل کښې پرې شوول او بېرته ګڼو ځنګلونو ته ورننوتل . دهند یانو سره په دې اومړنی پرلیدنه کښې بوازې دوکنګانو غویوبد وضعیت وکړاوداهم ښایې هغه شیبه وه چه هند یان له ځنګلونو څخه بهرراووتل غویو هندیان یعنې هغه څوك وتر ول چه دمخه تر دې بې هېڅکله هم غویی نه وولیدلی . پرته له دې نوروضعیت رڼ ښه و .

اما سره له دې هم کارلسف نی دځه نورې زیاتې ګټې هڅه ونه کړه ده دمخه د بل ژمي دراتګ څخه ډکورو نوګرد چاپېره یوډول کټاره ونیوله .

دساګا درو ایت سره سم نژ دې همدا مهال وچه دګبړې Gudrid (دکارل سف نی دښځې) زوی وزېږېد او نوم یې سنو ری Snorri پرې کېښود . تر کوم ځایه چه موږته معلومات شته « سنوری » اومړنی سپین پوټکی ماشوم و چه په امریکې کښې وزېږېد .

په دابل ژمي هند یان بیادو این لینډ مستعمرې ته راغلل دا ځل بیا پوټکي دغذ اسره تبادله شول . مګرو کنګانو خپله معامله دا ران د کټاروڅخه دننه پرې نه ښوول . پوټکی یې له دېوالونود ننه وغورځول په همدې وخت کښې وچه څه خبره سره لاندې باندې شوه اویوتن له هند یانو څخه ووژل شو پاتې نور له بېرته ځنګلونو ته ننوتل مګر کارل سف نی پوه شوچه وروسته له دې نه زیاتې دو کنګانو نوژ وند تریخ شو .

د کارلسف نی خبره درسته وه . هندیان وروسته له دې چه یې درېر

زیات نو رخلك هم ورسره ملګري کړ ي وو بېر ته پري را غلل اويوه خطر نا که جګړ ه و نښته .

په حقیقت کښې دو کنګانو دجګړ نوا ود هند ی توريا ليوتر منځ جګړه فقط دو ینو دنېزونو بهول و .

البته ظاهراً سو به دو کنګانو په برخه شوه مګر بهدي هم و پو هېدل چه په اصطلاح دېېريانو دښمني وروا وښته . لهدې امله يې به پای کښې فیصله وکړه چه زیاته هستو ګنه دلته نا ممکنه ده او بايد بېر ته ګرين لينډ ته ولاړ شي .

همداو چه يې دسکر لنګجردد ښمني څخه واورې، کنګال، ا وڅپانډ سمند رتـه ترجيح و ر کړ ه . بېر ی یې له الوارونو څخه ډ کې کړې او بېرته ګرين لينډ ته وخوځېد ل.

په دې کښې څه شك نشته چه و کنګانو د الوارونوا وپوټکو دپلاس وروړلو دپاره امریکا تـه خپل تګ ـ را تګ ـ جا ر ی وسا تـه دګر دا کوښښ یې هېڅکله هم بيا ونه کړ چه دې دامريكا هېوا دخپله مستعمره کړي . په پا ی کښې خپله دګرين لينډ مستعمره هم ورڅخه پا که شوه

ايا داچه ګرين لينډ يان د اسکمو ګانوتر یر غل لاند ې را غلل او ووژل شول او که داچه به هغه طوفان کښې ووژل شول چه اروپايې به ديار لسمه پېړ ی کښې جار و کړه موږ ته نه ده څر ګند ه . څکه چه اسناد يې را سره نشته .

له بد ه مرغه دو کنګا نو امر یکایې سفر ونو هم دفنيفيانو دافريقايې

یو نو نو په څېر آنې نتیجه نه لرله . نړی لادې ته نه وه مساعده چه دې دخپلوا کتشا فـاتو څخه استفاده وکړی .

دې دوا ړو ولسو نوله جرائت نه وو چه ستر کارونه کیسې کړه او بې له کوم شك څخه غوږ و نو ته رسیدلی او د ورو ستیو نسلو نو خیالات یې رابارولی دی .

مګر د وی د تېر وسیا حتو نو او اکتشافاتو څخه په مستقیم ډول سره نه دی متاثر شوی .

څرنګه چه دلرغونی کریټ دانجنیرانو کارونو او سکودو ګاما او لیف بجارنی او کارل سفنی هم د کرستوف کولمبس Christophe Columbic دپاره زیات څه نه دی کړی . اکثر هم داسې کېږی .

البته په دې کښې څه شك نشته چه داډول جریان د انسانی قوت دپاره ډېر لوی زیان دی . اما څه وکړو چه هم د الاره ده .

# یورشلم ته

وروسته د روم دامپراتورۍ له ګډېدلو څخه د پېړیو پېړیو د پاره په اروپا کښې رقه ګډوډي روانه وه . په پای کښې بربرانو پکښې ځاله وکړه او په دې پسې شول څو بر سېره پر شکلو، خوړلو او جنګېدلو د نورو شیانو په برخه کښې هم خپل ذوق اصلاح کړی .

د ۱۰۰۰ ع کال په شاوخوا کښې اروپا په بېلو بېلو ملتونو وېشل شوې وه چه هر یوه یې ځانته دود ونه او قوانین درلودل .

فرانسویان، هسپانویان ـ جرمنیان ـ ایټالویان او پورتګالیان په دې کښې وو خود اسې یو مدنیت رامنځ ته کړی چه د روم د مدنیت یعنې هغه مدنیت څخه چه یې نیکونو له منځه وړی و ستر او عالی وی . هم دا مدنیت دی چه موږ یې د غربي عیسوي مدنیت په نامه یادوو . رومیان د منځه د خپلې امپراتورۍ د انجام څخه ډېر زیات پر عیسویت ګروهېدلي وو او به تیاره عصر کښې چه یې په هلو ځلو پسې راغی ، عیسوي مبلغانو په بربرو قبایلو کښې د انجیل تلقین ته دوام ورکړ .

د ۱۰۰۰ م پېړۍ په شاوخوا کښې نه یوازې دا چه غربي اروپا عیسوي شوه بلکه کلیسا د انسان په ژوندانه کښې یو ډېر مهم عامل وګرځېد .

« پاپ » چه په روم کښې اوسېده اود کلیسامشرودهرپاچا شخه مقتدرو. ده دخپلورو حانیو نو په راسطه هم پاچا اداره کاوه اوهم رعیت ځکه ملایان ـ راهبان او اسقفان د اروپایو از بنی بسواد خلك وو پوازې دهمدوی لیك او لوست زده و. نوله دې امله دوی نه یوازې خلکو ته لارښودنه کوله بلکه حکمرا نانو ته یې هم مشورې ور کولې .دې کار کلیسا ته فوق العاده قدرت ورو بانښه.

تر کلیسا شخه ور وسته مقتدر خلك ملا کان وو په ځینو هېوادو نو کښې لکه فرانسه ـ دېرزیات ملا کان وو چه تر پاچاشخه یې اقتدار زیات وو . په حقیقت کښې پاچانور مانډی ویلیم William of Normandy وه دی برسېره پردې دانګلستان پاچاهم و . اماسره له دې هم نه یوازې دمنځنیو پېړیو ملا کان د ومره مقتدراو مهم وو لکه نورمانډی ویلیم بلکه وانۍ و خان ته جګړن لرل او دخپل قلمرو اداره یې په خپل لاس کښې وه او پر ته له پاپ شخه یې بل چاته څه اعتنانه کوله . دغې ساتنې په بدل کښې چه دې مقتدرو ملا کانو دهغو خلکو کوله چه یې د دوی پر ځمکوژ وند کاوه ـ خلکو موافقه کړې وه چه یاددوی په جګړ نو کښې داخل شي یا بې د ځمکو په کرلو کښې ورسره مرسته و کړي اویاور ته مالیه ور کړي .

دغه سیستم چه یې په منځنیو پېړ یو کښې ټوله اروپاو نیوله دملوك الطوائفی ( Feudalism ) په نا مه یادېږي.

په اروپا کښې دملوك الطوا ئفی دورې په پېښو کښې تر ټولو پېښو شخه مهمه او پارو ونکې پېښه صلیبی جنګونه وو . داد هغو یو نو ـ

نوم دی چه د زاړي ښو دو سلهوالو له واسطه بیت المقدس (Holy Land) ته شوی دی . دا یونو نه اکثر په یوولسمه اودولسمه پیړی کښې واقع شول . دا مهال « فلسطین » او « یورشلم » د ترکانو یا سر اسین یعنی هغو خلکو په لاس کښې و چه په حضرت عیسی یې ایمان نه لاره بلکه په خپل پیغمبر « محمد ص » معتقدوو . محمدیانو ، د محمد پیروانو ، د عیسویانو ښخه کړ که کوله . کله چه یې فلسطین و نیو نو یې هیڅ عیسوی هم نه پرېښوده چه فلسطین ته ورننوزی . دا د غربی اروپا خلکو ته - چه یې عادت لاره چه د یورشلم بیت الحلم Bethlehem او داولوز د غونډې او نورو تولو هغو ځایونو چه د دوی په مذهب کښې مقدس وو زیارت و کړی یوه ستره ضر به وه . د وی هیڅکله هم ښه نه وو استقبال شوی . تر هغو پورې چه یې د دغو ځمکو اوسیدونکو ته د خرڅ ګیری په پول ډرنې پېسې ور کولې په امان کښې به یې خپله لاره وهله . مګر اوس وضعه رڼه بدله وه . ترکانو هم دا چیغې وهلې چه : « عیسوی سپیانو ورک شیء ! نور مو نه غواړو دا ځمکه زموږ ځمکه ده . نور تاسې د خپل خدای دلمانځنې د پاره نه شیء راتلای ! »

عیسو یانو ویل : « ښه ! چه نه شورا تللی ؛ ملعو نو کافرانو - انتظارو باسیء او و ګوریء چه څوک په رښتیا سره پیغمبر دی . زموږ عیسی یا ستاسې محمد » د لته و چه کار له کاره تېر شو -

د اروپا خلکو چه ترکانو قهرولی وو فیصله و کړه چه د ې هغوی د بیت المقد س ښخه و باسی .

داناري بورته شوي چه «يورشلم ته ! يورشلم ته !» د اروپاله يوه نه تر بل سره پورې خلك د کليسا تر جنډه يولا ندې راټول شول .

لومړنی يون په ۱۰۹٦ کښې و . ددې يون اصلي مشر هر مته پيټر Peter the Hermit وچه ډېر وزياتو خلکو ته يې دمذ هبي تعصب الهام کړی و .

« يورشلم ته ! يورشلم ته! »

داچيغه دزر ګونو حنجرو څخه پورته شوه . پاپ وعده ورکړه چه دصليبي جګړې و دجنګيا ليو ګناه به ورو بښې او په دې يې متيقن کړل چه که څوك دحضرت عيسی په خاطر په جګړه کښې مړشي نو مستقيماً به جنت ته ځي .

دا وعده دد يند ارا نودپاره بالکل ملهم وه . مګر هغه څوك چه دلومړی ځل دپاره صليبي جنګ ته وروخوځېدل واړه مذ هبي خلك نه وو . البته هرچا همدا چيغې وهلې چه «يو رشلم ته!» مګر په دې منځ کښې ځينې د اسی خلك وو چه له بيت ا لمقد س څخه يې د کفا رو د ښارونه علا وه نور شيان هم په دماغ کښې ارل . ډېر خلك تردې څخه چه دابدې ژوند په ګټلو پسې وی زيات به دې پسې وو چه دې ګټه اوما جراجويي وکړی . دمجرمينو دپاره چه دقانون څخه يې خلا صون غوښته ، دناراضی اونا ر احته خلکو د پاره چه په دې ارزو کښې وو چه خپل کور ترك کړی او په يو ه نوي ځمکه کښې نوی ژوند ولری دتجارانو دپاره چه په تجارت پسې وو اود غلودپا ره چه په لوټ پسې وو صليبي جنګو نه ستر نعمت و .

دغه ډول د بېلو بېلو علتونو په اساس یعنی د خدای مینې او هم د ما چرا جو یې مینې ، هم د ځان د پاره قربانی او هم د کلیسا د پاره قربانی ، داروپا خلك د پېټر هرمیټ په چیغه راټول شول .

دفرانسې ـ جرمنی او جنوبی ایټالیا دانګلستان او پرتګال او نسلی شخه بی شماره د او طلبا نراغلل .

په دې لښکرو کښې بزګران او کارګران ـ سترملاکان او میرمنې ـ ملایان او راهبان د غه ډول غښتلی افسران او مشهور پاچان او هر ډول وړه خلك را ټول شول .

صلیبی جګړې په متعدد دوکوچنیو لوو یشل شول چه هرې ډلې یې ځانته مشرلاره او دا ډلې داروپا څخه د بېلو بېلو لارو نه په تېر یدلو شوې . څرنګه چه په منځنیو پېړیو کښې سفر دېر ونو او خطر شخه ډك و نو دوی ورو سته د ډیر و سترو تکالیفو د ګاللو څخه کانسټینټنوپل ته Constantinople ورسېدل . اکثر یې د لوږې او ناروغیو د لاسه تباه شول نور چه یې او زده او رېړوونکی سفر زړه وهلی و ډېر ته کورته را وګرځېدل مګر پاتې کسان یې لا هم په دې کښې وو چه ځانونه بیت المقدس ته ورسوی .

په کانسټینټنوپل کښې اخوږ بونه او په کوچنی اسیا کښې سر ترسره جنګونه روان وو . ترکان په دې کښې وو چه عیسویان تخریب کړی او عیسویان په دې کښې وو چه یور شلم ته ورسېږی .

په دې ترتیب د عیسی او محمد په نامه ډیرې بدې پېښې واقع شوې : صلیبی جګړې ورو سته داړیسا Edessa او انټیوچ Antioch د ښارونو

یعني هغوئحا یونود نیو لوشخه چه هلته یې ډیره ظلما نه‌رویه وکړه اخر د ۱۰۹۹ په پسرلي کښې د یور شلم شا وخواته ور ورسیدل . دوه هفتې یې ښارمحاصره کړ . صلیبي جګړن د ډوالونو نه بهردومره سخت دلوزې‌اوتندې شخه وربرېدل لکه ترکان اویهودیان‌دننه . نرښځې او ماشومان د مېږ یا نوبه شهرمړه شول . په پای کښې‌یو په یو دښار حصار مات شو . صلیبي جګړن دښاریه اوسید ونکو ورتو یې‌شوه اوقتل‌عام‌یې پرې‌جوړ کړ . دوی هیڅ ترحم‌هم‌ونه کړ . دا سې‌ظالمان اودوینوتږی‌وه چه خبره هم نه ورسره کېده .

دیورشلم د ښار دنیولو خبر په‌اروپا کښې‌خپور شو . کله‌چه بیت المقدس داروپا یانولاس‌ته‌ورغی ـ ډېرزیات‌صلیبي جګړن‌بېرته‌خپل‌ملک‌ته‌راغلل . مګر ډېرهم په فلسطین کښې میشته شول او داروپا شخه نورهم ورته را غلل اوورسره یو ځای شول .

نژدې پنځلس کاله پوره کراري وه . مګر په ۱۱٤٤ کښې‌ترکانو بیا یرغل وکړ . اروپا یان ډو کړې شول او په ډېرومشکلاتو سره یې‌وکړای شوچه یوازې د یورشلم شخه دفاع وکړي . کله‌چه‌دا خبراروپا ته ورسېد یو بل سترصلیبي‌جنګ ونښت . ددې جنګ‌انتظام دسنټ برنارډ St.Bernard په‌لاس وشو اولارښوونه یې د جرمني او فرانسې‌دپا چا یانوبه غاړه وه .

داخل په هغو خلکو کښې چه ددې مطلب د پاره را ټول شوی وو دښو خلکو‌شمېرعادي مګرد غلواوخو نکارانو شمېرتر عادي‌شخه زیات

اوددې لښکر کښې پای ډېر بدو د عیسویانو او محمدیانو ترمنځ جګړه ان تر ۱۱۸۷ پورې اوږده شوه او یو روشلم بیا د تر کانو لاس ته ورغی. دا د عیسوی نړۍ د پاره یوه مهلکه ضربه وه او د یوه بل صلیبی جنګ ترتیبات ونیول شول.

دا دریم او تر ټولو لوی ستر مشهور صلیبی جنګ و. ددې جنګ لار ښوونه فریدریک بار بروسا Frederick Barbarossa د جرمنی دامپراتور — ریچارډ کویوردې لیون Richard Coeur de lion دانګلستان د پاچا او دفرانسې د پاچا فلیپ اګوستس Philip Augustus په غاړه وه. سره له دې چه دا درې واړه پاچایان په خپل منځ کښې سره په جګړو کښېووځ بیا هم دریم جنګ یوه ستره کامیابی وه. صلیبی جګړنو بیا واړه هغه ځمکې و نیولې چه پې د لاسه وتلې وې او ریچارډ کیورډې لیون د تر کانو د مشر صلاح الدین سره یو تړون هم وکړ.

ددې تړون په اساس زائرینو ته اجازه ورکړه چه واړه هغو مقدسو ځایونو ته ولاړ شی چه د محمدیانو په لاس کښې پاتې وو.

وروسته بیا هم صلیبی جنګونه واقع شو مګر یو یې هم د دریم جنګ په اندازه مهم نه و او ددیار لسمې پېړۍ د سر ته رسېدلو سره د غه دول واړه حرکات پای ته ورسېدل.

خلکو د خپلو روحونو د تسکین او د خپلو لوړ زړو دلرې کولو ماجرا جویی او د خپلو شتو د زیاتو لو د پاره نورې مهیجې و سیلې وموندلې. او س نو بیایې تاسې د اسوال وکړی چه صلیبې جنګو نه دا کښې فائده

ارتباط لري، رښتيا چه صليبي جنګو نو - نوي ځمکې وته مونډلې. مګر بيا هم زموږ د کيسې دپاره ډېر مهم دي ځکه هم دا صليبي جنګونه وو چه يې داروپا د خلکو ستر ګې ددوی د سرحدونو نه ها خوا ځمکو کښې خلاصې کړې . په زرهاوو داسې خلکو چه کله د خپلو کليو څخه هم نه وو تللي په ميليو ميليو په داسې ځمکو کښې سفرونه وکړل چه ددو ی دپاره نوې ، اريانوونکې او مهيجې وې . هلته دوی د داسې مدنيتونو او دژوندانه د ډولونو سره مخامخ شول چه د دوی تر خپلو څخه ډېر لر غو نی - غنی او پر تمين وو . نوي غذا وې يې و څکلې د معما رۍ نوی شکلونه يې وليدل - د نوېو افکارو سره مخامخ شول او په شرقی بازارونو کښې يې داسې متنوع شيان وليدل چه د مخه يې نه پيژندل .

د روم د امپراتورۍ څخه را وروسته او روپا يانو د لومړ ی ځل دپاره دواو ې و څکلې - دور پښمو ټلا نـد نفـا ست او د عـاج سوږ ښوی والی يې احساس کړ اوزو ښانه رنګونو او ځلاندو جواهر و ته اريا ن شول .

د شرق ټول شته دهند يانو په مار کيټو نو کښې وو او څنګه چه اروپايانو وليدل نو يې زړه پرې بايلود . دلومړی ځل دپاره دغو ځانګړو خا نيو پر خرو سپر وخلکو نړۍ ته په تعجب سره و کتل .

ډېرو يې لاهم ځمکه يو ښقاب ګڼله . مګر دا دوی ته ددې څرګنو چه ځمکه ترهغه څخه چه دوی منلې وه ډېره لويه او ار يانوونکې ده

دوی غو ښتل چه په دي بر خه کښې نور هم خپل معلو مات زیات کړ ی او هغه ځمکې و مومی چه دهغو څخه دوا وې، سره زر او عا ج راځي . دما جرا جوییړیو نوی فکر په خپرېدو شو .

« موږ باید نورهم مخ په شرق ولاړ شو او هغه څه دخپلوځانو نو دپاره ومومو چه عربی سودا ګر يې پلو ري . موږ هم باید د واوو جزیرې- او کېتې Cathay ته ولاړ شو . »

په دي ډول یو رشلم له یاده ووت . دخلکو افکار لاهم دشرق خواته زیات ور و ګر ځېدل . غربی سو داګر او تجاران چه دصلیبی جګړو محصو ل تجارت شتمن کړی وو اوس خپله خپل منځ کښې په جهاد پسې شول .

اوس ددوی دسره ټولېدو شعار بل وا و موضوع يې ور ښم او دوا وې وي

یو ځل بیا هم حرص او ا حتیا ج هغه ا نګېزې و ې چه بشر يې ا کتشافاتو ته ور و کشاوه.



# د وینز سوداګر

دایټالیا د بحیرې د غاړې په واړو هغه ښارونو کښې چه د صلیبی جنګونو په واسطه شتمن شول د یوه برخه هم د وینز په اندازه نه وه. دا ښکلی ښار په اډریاټیک کښې د یو لړ کوچنوټو جزیرو د پاسه فقط دایټالیې شمالي ساحل سره جوړ شوی و.

دا د ښار دودانولو دپاره یو عجیب ځای و. مګر د یو بندر په حیث یې د هر ملت پټېر او ریچار د کولو دی لیون له مهاله د مخه لا ډېر زیات مزیتونه لرل او د وینز سوداګري د مېلو پټرانی د ځمکو سره روانه وه د صلیبی جنګونو په وخت کښې وینزی Venetian تجارتی بېړیو هم سړی او هم تجارتی اموال بیت المقدس ته وړل او راوړل. په دیارلسمه پېړۍ کښې وینز په ټوله ایټالیا کښې معمور او قوی «ښاری دولت» او د سمندری قوې له حیثه د ټولې اروپا پېشرو شو. د غه ډول نوموړی ښار د نړۍ د هغه ډېر ستر سیاح د زېږېدنې ځای هم شو چه نوم یې مارکوپولو Morco Polo و مارکوپولو د نکولو پولو Nicolo Polo زوی و. نکولو پولو او ورور یې Moffeo ډېر ستر سوداګر وو. د دوی بېړۍ په منظم ډول سره فلسطین او ارمینیا Armenia د بحیرې غاړې ته تلې او بېرته یې هغه ورېښم - دواوې - عاج او نور راوړل چه د مخه

کښــا روان دهغو سیمو شخه را وړل چه داډېره موده اروپایانو هېرې کړې وې ـ پر یشیا هنداو چین.

ایا دا چه نکو او پولو معتقد وو چه ځمکه هموا ره ده او یا هغه خرافات پسندی ـ ور په بر خه وې چه په منځنیو پېړیو کښې معمولې وې او که یه ؟ مو ږ ته نه ده څر گنده . خو ببا هم که دوی په دې فکر وو چه ځمکه هموا ره وه نو په دې یې هم بــا و ر و چه چین تـه تګ او را تګ یې له د ې شخه چه د ې سواحل و نږ یېزی یادې دبلاوو په واسطه کېږم شی ، ممکن دی . ا و چین ته تګ ددوی دتجا رت له نظره ډ ېر زیات اهمیت لاره دشرقی ور یښمو ـ دواوو اونورو دتجمل دو سا یلو دیاره تقا ضا ورځ په ورځ ډېره ز یا تېده . دایښا لیې سودا ګرو نه شو کولای چه کافی ذخیرې ومو مي رقابت زیات شو قیمتو نه لوړ شول . عربانو بیاخپل اوزده نری لاسونه سره ومښل مسك شول او و یې ویل :

« اروپایانو! بایدزموږ اموال په ډېره ګرانه بیه راو نیسیء » اوشه موده اروپایانوهمداسې و کړل . مګریوه ورځ نږپولووړونوفیصله وکړه چه و ګو ری پرته ـ دعربو دتجارونه هم کار کېدلای شی ؟

دلته دوی په دې فکر کښې شول څوددې پرځای چه دعربانوددلالانو سره معامله و کړی شیان راسا ً د کاروانو نوشخه واخلی . همدا وچه دتورې بحیر ې دشرقی پای شخه دیوه سمندری یون په نیت وخوځېدل . له دې شخه دوی مخ په هغه ځای ورو خوځېدل چه سیرای Serai نومېده اود کاروان دهغوسترولار وشخه دیوې پرسرپرت و چه له چین شخه هند ته تللې د ه .

کله چه دوی سیرای ته وروورسېدل ملته دځنګلي قبايلو ترمنځ جګړه ونښته اودوی ته اخطارورکړل شوچه په امن کښې به ترته توري بحيري ته نه شي ورګرځېدلی . همداو چه وړاندې بخاراته ولاړل . دلته دوی له يوه مرغه د چين دامپراتور ( کوبلای خان)Kublai Khan داستازو سره مخامخ شول . چينيانو ته پولوګان يوه وروالګېدل ، اوډېر زيات ګوښښ يې وکړچه يې دې ته تشويق کړي چه له دوی سره د« سترخان » قلمرو ته وروګرځي .

چينايانوورته وويل : « سترخان دغرب دملکونو په برخه کښې ډېر زيات څه اورېدلي دي مګرلاتين Latin انسان يې هېڅکله هم نه دی ليدلی . پولوګانو هم هېڅکله خان نه وليدلی .

استازوخبري ورسره اوږدې کړې . دوی پولوګانوته دېټې خزانې وعده ورکړه اوددوی دمحفوظې لارښودنې ضمانت يې وکړ .

نکولواوميفيو به ته سره و کتل ايادادېره فوق العاده موقع نه ده ؟ ايادې خلکودوی ته دداسې چانس پيشنهادونه کړچه دې کېټې يعنې دقولو سوداګرو خيالي طلايي دنياته ولاړشي .

دوی ورته وويل: « ډېر ښه څرنګه چه تا سې موږته دډېرې سترې ګټې اومأمون يون وعده راکړه نو به مودلارې مله شو . سفر يوکال اوږدشواووايي چه « دوی دډول ډول او متعددو عجايبو سره مخامخ شول . » مګر کله چه د کوبلای خان دربارته وروورسېدل واړه له ياده ووتل .

ځکه په خاناډو Xanadu کښې ننني پیکنګ ته نژدې کوبلای خان یو فوق العاده عجیب قصر جوړ کړی و.

وروسته دوتي دامپراتورۍ اودستر سیاح چانګ چن دڅوندانه دشپږ ورځوخخه په چین کښې دېرزیات تحولات منځ ته راغلي وو.

چین دېر برمځ تـلللی و، دېر وزیاتو شتواوسترتمدن خاوند هیواد ګرځېدلی و. کوبلای خان دمغوشمالي تاتاري جرنیلانو له اولادې څخه و چه مرکزي قلمرویې هغه وختونیوچه لری خپلوان داوو یا په چپاو لګیاوواودروم دامپراتورۍ برخمـنګو یې یرغل و.

چین دامهال دځمکې دسر یو دېرغښتلی او نیکمرغه هیوادو.

او کوبلای خان دخپل وخت یودېرستر حکمران، پولو ګانو وویل:

«داخو د پرهو ښیاراو فاضل سړی، دېرستر کپتان اودحکومت او دامپراتورۍ دادارې دپاره دومره ښه دی لکه هغه نور دېرزیات زړور چه د تاتارو په قبایلو کښې تېرشوی دی،» دا نو دې یو له غوره مالي ټڅخه ډك ترسیم دی. ځکه دادرسته ده چه کوبلای خان یوستر حکمران او یو تکړه جنرال و. مګر دومره یو تلي شخصیت نه وچه پولو ګان غواړي چه پرموږ یې ومني. تاریخ شاهد دی چه دی داخلاقي اصولو فاقداو ظالم سړی و مګر پولو ګانو دی داسې ښودلی دی لکه څرنګه چه دوی ته برېښېدلای و او داهم واقعیت دی چه دی تل د پولو ګانو یوهو ښیاراو سخي ملګری و.

د «ستر خان» په سلطنت کښې ښکـلی و اتـونـه د پوستې سستم - ښا یسته ښا رونـه او ترڅولو نـه زیات قـدا نون

اوانتظام موجود وو . پولوګان ډېر زيات د هغوشيانو تراغيزې لاندې راغلل چه يې وليدل او کوبلای خان ډېرزيات د پولوګانو ترتاثير لاندې وو .

بالاخره د لته دوه نفره ژوندي لا تينيان د هغې عجيبې عيسوي ځمکې څخه راغلي ووچه تجارانو يې خيالي کيسې ورته ويلې وې . کوبلای خان له پولوګانو څخه دا روښا د خلکو ددودا ود ستور په تېره بيامذهب په باره کښې ډېرې زياتې پوښتنې وکړې . ځکه دې عيسويت ډېرزيات جذب کړی و . پولوګان ترلسو کلونو نه هم زيات دچين په دربار کښې واوسېدل او کله چه بېرته مخ په غرب وخوځېدل خان په سوغاتو نوبار کړل او طلايي پاسپورت يې ورله ورکړ « هغه پاسپورت چه دهغه په زور دوی کولای شو په هغو هيوادونو کښې چه دوی ورڅخه تېرېدل وا ړه د ضرورت وړ شيان برابر کړي . »

خان يوازې دې غوښتنې وکړې لومړی داچه پولوګان بېرته راشي . دوهم داچه دوی دپاپ څخه و غواړي چه « سل تنه پوهان چه دعيسوي مذهب داسا ساتواوهم داووقتونوسره فوق العاده اشنايي ولري ورته راولېږي . دريم دا چه دې پوځه د هغو ـ مقدسو ـ تېلو څخه چه دحضرت عيسی پرمزار سوځي ورته راوړي . »

پولوګانو واړه د غه غوښتنې ومنلې . مزل او زد او خسته کن و .

دېرسته ده چه ددوی مصارف خان ورکړل مګر « سره له دې هم ـ طبيعي مشکلات یاموانع چه دوی ورسره مخامخ وو لکه فوق العاده

ساړه - واوره - يخ او طوفاني سيندونه - دو مره زيات وو چه ددوی پرمخ تنګ هر ومرور بهوونکی و او ترشو چه دوی د يوه بحری بنبدر ښارته- په کوچنی ارمنيا کښې واوليا سس Laiassus نوميده- وروړسيدل دري کاله پري تيرشول .

لهليا سس څخه سمندرته ورننو تل او په پای کښې د ۱٦٢٩ په پسرلی کښې وينز Venice ته وروړسيدل . دهغو دوو کلونو په موده کښې يې چه په وينز کښې پاتې شول خپل دسودا ګری ترتيبات ونيو ل او د هغو سلو تنو پوها نو په راتولو لو کښې يې فوق العاده کوښښ و کړ چه خان يې غوښتنه کړي وه .

مګر دپاپ په زړه کښې نورڅه وو. همداو چه په پای کښې يې دپولو ګانو سره فقط دوه راهبان ملمه کړل .

د ۱۲۷۱ په دوبی کښې له همدې دروخدای دوستا نو او دنيکو لو دزوی مار کوسره چه اوس اولس کلن ځوان و- پولو ګانو بيا خپل سفر شروع کړ دوی لومړی يورشلم يعني هغه ځای ته ولاړل چه مقدس تيل يې ورڅخه راخستل او بيا يې ارمنيا ته ولاړل . په ارمنيا کښې دامهال اخو ډب رزان و ترکان او عيسويان سره جګړه کښې و او پولو ګان دمر ګ دخطر سره مخامخ وو راهبانو فيصله وکړه چه دادخدای اراده نه ده چه دې نور خپل يون ته دوام ور کړ و .

همداوچه پولو ګا نو ته يې وويل چه بايد کور ته ولاړ شی . دې خبرې پولو ګان سخت تکنی کړل - مګر د راهبانو چو رت هم نه وخراب .

په دې ترتيب ميفيو، نکولو مار کو او ملازمين يوا زې پاتې شو ل .
پولو ګان لوم نی خلك نه وو چه يې د توري بحيرې د شرق خواته يون و کړ.
بلکه د ديار لسمې پېړۍ په نيما يی کښې دوو خارق العاده مبلغينو
يعنی فر يرو يليم روبر ك Friar William Rubruck او فر ير جان
کار پينی Friar John Corpini له پېلو پېلو لارو نه پر شيانه ديوه
بال مغل امپرا تور دربار ته ورغلل . کله چه بېر ته راو ګر ځېدل نو يې ښه
د شرق خواته ديوه ستر تمدن چه « د پر عالي ور پشمېن تو کران اوددوا
جوړ ولو چونه ، ورځخه را وتل ـ خيالي کيسې وو يلې . مګر دوی
بخپله هم د غې سحر امېزه سيمې ته سفرو نه کړ .

له ار منيا څخه پولو ګان دجنوب خواته د « اورمز Ormuz » په لور
چه د خليج فارس يو بندر دی ورو خو ځېدل . هلته چه دوی غو ښتل
چه د هغه ځای څخه په بېړۍ کښې مخ په چين ور وخو ځېږی . ميفيو
او نکو لونور دو چې د يون څخه ستړی وو او دا يې انګېر له چه وشه
د سمندر يون دوچې تر يون څخه مصون او ارام دی . خو ځر نګه چه يې
په اورمز کښې بېړۍ وليدې مفکو ره يې واو ښته . ځکه بېړ ی ـ
د سمندر ديون ور نه وې . همداو چه يې بيا هم خپل يون ته د کاروان
په وا سطه دوام ور کړ . د شمال خواته تاو شو ل او خپل يو ن يې په
هغو ځمکو کښې شروع کړ چه يو وخت د پر شيادامپراتورۍ جزء وې
دا لاره غير له هغې څخه . وه چه د مخه پرې تللي و .

کله که نقشې ته څیر شيء نو به دا لار وو ینيء ۰ د ایو ډیر اوزد او له خطر څخه ډك یون و او مار کوپو لو او دهغه پلار او تره یې په داسې ځمکو کښې و کړ ځول چه بیاتر نولسمې پېړۍ پورې اروپا یانو ونه لیدې. ډیرې زیاتې خاره دښتې یې تر پښو لاندې کړې اوډېرې چیرس Treacherous دغرو نو دو تو نو څخه تېر شول . مګر بیاهم په ر بړ ونو کښې و و . او زې اوتندې ور بړول. ډېرستړي ستو مانه او ځنګلي قبا یلو دېر له پسې یرغلو نو هدف وو .

مار کوپولو مونږ ته د موجوده هند دسرحداتو دشمال خواته دوحشي او لوړ وژورو سیمو او دهغو وحشي قبا یلو په باره کښې چه پدغو سیمو کښې میشت ووپوره او ښکاره معلو مات را کړی دی . دپدې هېواد کښې ډیر زیات ظالمان او خو نړیان ژوند کوی او هیڅ داسې ورځ نه پکښې تیریږ ی چه دې ددوی ترمنځ دقتل پیښه نه کیږي . د وی کوښښ کوی اوژوندی مخلوق نیسی زوړیې قصابی کوی او ځوان یې دخپل خدمت د پاره په کارا چوی . کهسو دا ګر ښه مصلح نه وی نود مر ګ د خطر سر ه مخامخ کیږ ی او یا ابز تر ابزه خپل ټو ل شیان بایلی .

پولو ګانو ته هم دمخه ترد ې چه د دې کو چیا نو له ځمکو څخه تیر شی عین همداسې څه ور پیښ شول . یو ه شپه دوی لوټ شول او ډیر زیات ملا زمین یې ووژل شول . پولو ګانو او کسو نورو ایله خپل ځانو نه ژوندی وا پستل. یو بل ښارته یې کلی ته یې پناه یووړه هلته یې استراحت و کړ

اووروسته دیوه لنډه استراحت څخه یې بیا خپل سفر شروع کړ .
د اخال دوی د هما لیا د لوړ و غر ونولمنوته ور ورسېدل . وروسته له دې چه دېڅو وتونو نه تېرشول دپاموړ دلوړې سطحې دتبت سیمې ته چه په
واوړو او یخونو نغښتې وه ورغلل . دپامېرلوړه سطحه د نړۍ بام کڼل
کېږي چه دسمندر څخه یې ارتفاع شل زره فوټه ده اودنړۍ د خرابو
څخه یوه ستره خرابه ده . پولوګان دو لس ورځې سپاره و ربا ندې
روان وومګر ددې دو لسوور ځو په موده کښې د وی هیڅ ژوندی
جسم هم و نه لیده . نه انسان ، نه حیوان او نه کومه دوابښه تیغه .
مارکو وایی چه : «غرونه دومره لوړ دی چه څو کوته نېژدې یې
هیڅ مرغه هم نه لیدل کېږي . د غسې هم نه پو هېږم چه دابه څومره
فوق العاده و ګڼل شي امادایو واقعیت وچه دهوا برښ دومره تندوچه که به
هلته اورولګول شو هغه تودوخه یې نه لرله چه یې په ښکته برخو کښې لرله .
اودغه د ولیې په پخه غذابانډ ې هم عین تاثیر نه لاره » وروسته
له یو بل پنځلس ورځنی سفرنه « چه یې په غرونو اودرو کښې و کړنو
دهغو سیندونو اود ښتو څخه تېر شو ل چه دسا کنینو نښه هم نه پکښې
لیدل کېده » پولوګان په پای کښې یارکند اوختن ته ورسېدل . دلته
دوی « دانسان دژوندانه دپاره ټول ضروري شیان . . . . . په فوق العاده
اندازه وموندل . » وروسته دهغه هیبت څخه چه پردوی د خرابو څخه
دتېرېدلو په وخت کښې تېر شوی و دادوی ته جنت ؤ . دپولوګانو
حکایت دی چه ددغه ځای خلك ډېر ماهر صنعتګران ، بزګران
او دانګوروو باغونو باغوانان وو ـ اوډېرزیات بډ ونه یې لرل .

دختن شخصه پولو ګان په بر کتی او ښو مځکو کښې دلوپ د ښار پر لور چه په کوبلای خان پورې مربوطه سیمه کښې د ګوبي دد ښتې Gobi Desert پر غاړه وا قع و، ورخو ځېدل.

دلوپ په ښار کښې پولو ګانو د ګوبي د ریګستا نو نو په باره کښې سرې کیسې واورېدې . دوی ته ویل شوی وو چه له دې د ښتې شخصه تېر ېدل یو کال نیسي . دا یو ناممکن کار دی او هېڅ کاروان هم نه شی کولای چه د ې دد غې پوه سفر دپاره کافي خواړه او اوبه د ځان سره واخلي . ددې د ښتې له ډېرې کم سو ره بر خې شخصه تېر ېد ل هم یوه میاشت غواړ ي .

« دد ې د پرشوور ځو په موده کښې سفر د ریګ په میدانو نو او یا و چو غرونو کښې وو . په دې سیمه کښې نه مرغان لیدل کېږي او نه حیوان . ځکه د لته د دوی دپاره هېڅ شو مه هم نه پیدا کېږي . »

هېڅ ډول غوا هم دلته نه پیدا کېده مګر هغه چه د شغالانو او کجیرانو خوښه وه . په بیدیا کښې عجیب غږونه اور ېدل کېدل او د سا فرانو ته یې د مرګ خبرې کولې .

« وا قعا ً عجیب او مز خرف عقاید هغه کیسې دی چه د د غې بید یا دارواحو په باره کښې دی او هغه دا چه وا یی فضا به پر د موسیقۍ د ډولو الاتو د غږ ونو او د ډولونو د غږ مبا او د جګړو دو سلو د شر نګها ر او ډزو شخه ډ که شوه . » مګر پولو ګانو سره له دې ډولونو او ازونو بیا هم د اد ښته دلوپ له ښار شخصه د سا شیو Sachiu ښار ته د تلو په لاره کښې په سپرلي

ووهله . داته دوی درست دستر خان په قلمرو کښې وو . له ارمزڅخه سفر دري کلونه ونیول. دادوخت اوږدوالی موږ څه په حیرت کښې نه اچوی بایدداخبره ومنو چه دپولو ګانودا کار دمعجزې څخه څه کم نه و . ځکه حتی دننني عصر ی وسایلو اوعصر ی علمی جغرافیا یی معلوماتو په صورت کښې به هم ددوی سفر یوفوق العاده اقدام وی .

دبیدیا څخه دتېرېدلو نه وروسته د پولوګانو حال ښه ؤ . د خان په قلمرو کښې واقو نه رټ ښه وو . قانون او انتظام حکمفرما ؤ اوسفر په چټکۍ اوارامۍ سره کېده . دپوستې سرکونو به غاړه وروسته ترهر پنځه ویشتو میلونود پوستې سټېشنونه موجود وو . دېر ښکلی عمارتونه چه دېرې ښایسته کوټې پکښې جوړې وې اوټول داستراحت وسایل دمسافرودپاره پکښې تیاروو.

مارکووایی : « هیڅ امپراتور رسا چاپاخان هم کله د ومره د و لت نه دی لرلی . » . په دغو سټېشنو نو کښې خاص دخان دقاصدانو اوسفیرانو داستفادې دپاره اسونه ساتل شوی وو .

پولوګانو ته دغو استانخوو یلی وو چه کوبلای خان په صیفیه کښې دی . نوله دې امله د وی په د ې تر تیب کښې شول چه کمبالك Combaluc ته ولاړ شی .

دوی ته دپنځلس وړ ځو سفرپاتې وچه خصوصی سیاسی نماینده ګانو ورسره ولیدل . کوبلای خان ددوی دراتګ څخه خبرشوی واوغوښته یې چه فوق العاده استقبال یې و کړی . پولوګانو خپل پاتې سفر په دېره خوښیه

او ښاد يې سره وکړه. په صيفيه کښې خان دخپلې ټولې شرقي دبدبې او پرتم سره ددوی دپاره يرايي په انتظار کښې و.

«پولو کانو يې خان ښوته ورو غور ځاوه مګر امپراتور ورته داو چتېدو امر وکړ او ډېر شريفانه وضعيت يې ورسره وکړ او ددوی په راتګ يې ډېره زياته خوښي ښکاره کړه.»

دې مارکو ته ځيرشو او وي ويل: «دا څوک دی؟»

نيکولو ورته وويل: «دا دې نوکر زما ورور دی.»

خان ورته وويل: «دی دې هم ستړی نه يې زه يې په ليدلو ډېر خوښ شوم»

بيا يې نود مبلغانو پوښتنه وکړه او ددې خبرې په اوريدلو چه پاپ ديوه لاس ور کړاوته هم تيار نه وو ډېر خپه شو. مګر ديورشلم مقدس تيلو ته اود پولو کانو پر بيا ليدلو ډېر زيات خوشحاله شو.

مارکو پولو ته هغه دژوندانه ډول چه يې خپل شاو خوا ليده داسې ښکاريده لکه په خوب چه يې وينی. دې يو ذکی - لايق او زړور ځوان و. مګر زيات خوش طبعه او خيالي سړی نه و. دده دليکو نو څخه موږ دومره پوهېږو چه کلانو يې پر احساساتو ډېر زيات تأثير کاوه او دهر ژوندي شي سره يې مينه لرله. اما پر سپره پردې يې دسوداګرۍ سره هم علاقه لرله. دې دسوداګرو دډېرې اوږدې سلسلې محصول و اوژوندته يې دسوداګرپه سترګو کتل. مګر دکوبلای خان په دربار کښې دده دسر څخه دا سترګې نبزدې وتې.

په اروپا کښې داپه خوب هم کله چانه ولیدلی چه دې چیرې داسې دولت اوعیش هم وجو دولری . مارکو د کوبلای خان دهستو ګنځی عجایبوته هك اریان شو.

دیوالو نو ته یې یاور پښمین ټوکران نیول شوی اوردد یوالو نو په ښکلیو رنګونو رنګ شوی وویا پرله پسې او بدل شوې پردې ور باندې ځوړند لې وې - دماڼۍ په بې پایا نه یخو نو کښې حوضونه وو چه دېتو څخه یوك اوطلایی بر ېښېدل. دغه ټول هره خواد ګلوونې ولاړې وې . ونې دخان ډېرې ښې ایسېدې اودمار کوقول دی چه : «هرچېرته به چه کومه ښکلې ونه پیدا کېده اوامپراتور به پرې خبر شونو به یې سمد ستی خلك پسې لېږل .» مار کو داوهړی ځل دباره داسې ونې ولیدې چه هیڅکله یې هم پا ڼې نه رژی او تل شنې وی . داخبره د دغه ډېر ه عجیبه وه ځکه چه دمیلو یتړانې په سیمو کښې داسې و نې هیڅ نه وې .

امابیاهم داواړه دونو ښکلا اودقصررونق څپله دامپراتور پرتم اولوی والی ته هیڅ بر یښېده کوبلای خان داسې چپنې اغوستې وې چه سره زرا وجواهرور باندې ایر شوی وو زرتنه نوکران یې په خدمت کښې تیارولاړوو. کله به که په کومه خواتلو ، نوبه په داسې یوه تخت روان سپور شو چه به څلورو پیلانوو . پر داتخت روان څه هسې عادي تخت روان نه ؤ بلکه « دا یو دا لوا رونو څخه جوړ ه کوټه وه چه د ننه دسروزرو تختې ورته نیول شوې وې اود بهرنه دزمریانو بوڅکی پرې اچول شوی وو»

مار کو د مانه‌یدیه براخ غولی کښې کښېناست دغو لی شاوخوا دیو الونو برمخ سره او سپین نیول شوی وو.

غذا هم د کیفیت او هم د کمیت په لحاظ ډیره ښه وه . مار کو کتل چه خوراك د سرو په قابونو کښې دی او څکاك د سرو په ګیلاسونو کښې . دغه ډول یې د امپراتوراو نور و دربار یانو برچینولی شو و جواهر و ته یې ستر ګې خیره شوې .

کله چه خان د ډوډۍ څخه فارغ شو ساریانو خپل ساز شروع کړ او کله چه یې شراب و څکل ټول میلمانه ورته په ز نګنو شول او د مار کو په قول د هیچا هم داز ړه نه لاره چه دې د غولي د باسه ناست یا ولاړ پاتې شي . د امار کو ته چه دارو یا یعنې هغه ځای څخه را غلی و چه هلته پیش آمد یوڅه زشت و- فوق العاده ادب ښکاره شو.

وروسته له دې چه ډوډۍ وخوړل شوه او نو کرانو میزونه پاك کړل د در بار شعبده بازان او باز ګران د میلمنو د خوښۍ د پاره په او یو شول.

دا له ښکلا، غنا او بې پایانه خوښۍ څخه ډك یو ژوند و .

مګر مار کو پوا و یوپوه ځوان و ، او دا یې و نه کړه چه دې خپل ټول وخت فقط په شرابو، کبابو او د بې نوي نړۍ په تعجب کښې تېر کړي .

بلکه ده د تار تار انو د عاداتو او هم د هغوی « د ژبې - دودونو ، لیك او د جنګ د چمونو سره » ځان اشنا کړ . دی په پای کښې د خان د طبیعت سره دومره بلد او ځان یې داسې هوښیار او محتاط ورمعرفی کړ چه خان

په خپلو نو کړانو کښې و نیواو دخپل مخصوص نماینده په حیث یې دخپل قلمرو ډیر ولرو سیمو ته واستاوه او ور ته یې وویل :

« زمانو رسفیران رتې شود ګان دی . دوی ماته پر ته له هغه شه شخه چه ددوی خپل کار دی نور هیڅ هم نه وایی . مګر زه غواړم چه دپیلو پیلو هیواد و نو دعجیبو دودونو شخه خبر شم »

مار کوپولو هم فیصله و کړه چه د خان درعایاوو شخه به ټول هغه زده کړی چه یې کولای شی.

ده پوره اولس کاله په ختیځو ځمکو کښې سفرو کړاو ډیر ې اریې اوایسته را ایسته زیا تې سیمې یې و کتلې. دافقط دا و مړی ځل د پاره وو چه یوه اروپایی دډیرې سکاره ولیدل او مار کوهم ددغه شی په برخه کښې په ډیره دلچسپۍ سره کړیدلی دی .

دمار کوقول دی چه وایی : « په ټول ختای کښې داسی یوه توره ډیره په غرونو کښې پیدا کیږی چه یې خلک راباسی او د لرګی په شان یې سوځوی . کله چه تا سی دغه ډیره دشپې سره و لګوی ، نوان سهار به یې هم همداسی لګیدلې وموم ، اودادسوخت هغه سرما یه ده چه په د غه هیواد کښې بل هیڅ شی هم نه ورته رسیږی».

مار کوپولو نه یوازې سرتر سر چین و کوت . بلکه هند او کوچین چین ته هم ولاړاو تبت ته یې هم سفرو کړ.

په یانګ سی کیانګ یعنی هغه سیند کښې یې هم پربیړۍ سفر وکړ چه موږ یې درو قی او چانګ چن سیاح به مبحث کښې یادو نه و کړه.

د یـا نـگـ سی پر غـا ړه ډېر ودان ښار ونـه موجـودوواوسینه دېېریو ښخه ډك ؤ. مګر په دې ټولو ښارونو کښې هېڅ یوه‌م‌دومره ښه وښکلې لکه کنسیا « دبهشت ښار »

دلته مار کوپولوداسې ما نۍ ولیدې چه دخان ما نۍ اهمېې عادي ځایونه ورته ښکار یدل . دې د « جنت » د « ښار» ځینې ماڼۍ دومره پراخې وې چه له سلو جلاجلا میلمستو نو نو ښخه یې په هریوه کښې په عین وخت کښې سل میلمستیاوې ور کول کېدلای شوې .

دېوالونه یې په ډېروعالي او نفیسو رنګونو باندې نقاشي شوی وو اولوښي یې دسرووو . داشرافو جامې په زمردو ، یا قوتو او الماسو باندې ښکلې شوې وې .

دیانګسي دسیند جنوب ته دزیتون Zayton بندرؤ .

دلته‌ما ر کوپولو په‌دارو ګانو باربېړی‌او دډېرې زیاتې قیمتې ډبرې او مرغلرې ولیدې . . . . . . اوډېر ګران او خوشبویه‌لر ګی یې وموندل . »

هم‌دلته ده‌د سیپانګو Cipangu دجزیرې په‌با ره کښې هم‌چه ویل کېدل په‌غناا و هستی کښې ترختای ښخه‌هم‌فوق‌العاده زیاته‌ده‌معلومات پیدا کړه . سیپانګ جاپان ؤ چه‌نه یوازې دامپراتور شکاك یې په‌طلایی ګیلاسونو کښې وو بلکه دېوالونه‌اوغولی یې هم‌له‌سر وزرو ښخه جوړ وو.

دزیتون د خلکو په قول سیپا نګ یوه‌ډېر عجیبه ملکه وه . اما داسې عجیبې ملکې نورې هم ډېرې زیاتې وې .

دوی‌ویل چه : «په جنو بی سمندر کښې په‌زر ګونو داسې په‌مسالو اوسرو زرو ډکې جزیرې شته دی »

مار کو پو لوپه‌دا سې حال کښې چه بې‌ذ هن هغو عجائبوچه‌یې لیدلی اواور یدلی‌وو سخت اشغال کړی‌وپه‌رته د کوبلا ی خان دربا رته ورغی اوخپله کیسه یې ورته‌و کړه .

خان ددې‌په کیسودېرسخت خوښ شواووې ویل :

« که له‌دې ځوان سر ه‌ژوند وفا و کړه نو ډېرستر سړی‌به ورځخه جو ړشی . »

تردې‌وخته په‌پو لو گانو باندې‌په‌چین کښې‌اولس کاله‌تیرشوی وو دامهـا ل هـم خـان زوړ شو ی‌ؤاوهـم نکولو او میفیو . پولو گان سخت شتمن شوی اوپه‌دې‌ا رزو کښې ووچه یو ځل بیا بیرته‌وینز ه‌ته و لاړ شی . د و ی خان له خپلې ارزوځخه خبر کړ ا ود یوه مصو ن یو ن دبرابر ولو هیله یې ور ځخـه و کړه . امـا خان انکارو کړ ا و ورته‌یې‌وویل :

« ګرا نو ملګروزه دانه شم کولای . ځکه‌ځنګه کېدای شی‌چه‌دې زه‌دخپلو ډېر وښونماینند ګانو ځخه‌جلا شم؟ مار کوبا ید د تل د پا ره همدلته‌واوسی . ایادلته‌زماپه‌دربار کښې څه ښه سلوك نه‌دی‌درسره‌شوی؟ ایاشته من‌نه یې او که نورڅه غواړی ؟ »

«غواړم چه‌پېر ته‌غرب اوو ینز ته ولا ړشم» مګرخا ن یې‌خبر وته غوږ کښې نه ښود . پولو ګا نو هرڅه‌ځه‌چه‌یې دلیل لار ه کولای‌شو. مګر دا معقو له‌نه‌وه چه‌دې له کوبلا ی‌خا ن د چین دامپر ا تو رځخه وغوښتل شی‌څوله خپلوملګرو ځخه‌جلاشی پو لو ګان با ید هر و مرو په

ختنا کښې پاتې شي . میفیو او نکو لوتقر یباً سخت ظا هرفرېبه وو .
مار کود هند په سفرروان ؤاودایې رته ضرور ی ګڼله چه وروسته
د بېرته را تګک شخه یوځل بیاایتا لیاته ولاړشي .

اماشنګه کېدای شي چه دې کوبلای خان ددوی عرض وا و ری او
یادې له دوی سره ددو ی په پلان کښې مرسته و کړی ؟

کله چه دوی دهر شي شخه نا امید ه شوه قسمت ورسره یاری و کړه .
دپارس دپا چا نمایند ګان د کوبلا ی خان دربا ر ته دچین د شهزاد ګۍ
در یباری د پیاره را غلل . شهزا د ګۍ نوې پېغله او ز ښته ښکلې وه .
کوبلای خان غو ښتل چه خپل خو یښ د پا رس پاچا خوشحا له کړی .
مګر ده ې ته اریان وچه یوه نازولې اوا س کلنه نجلۍ په شنګه غرب ته
دوچې سفرو کړی . همداؤ چه فیصله وشوه چه دپارس سړی باید د سمندر
د لارې نه لاړ شي . کله چه دپا رس نما یند ګانو دا خبره واوریده سخت
ترور شول . ځکه دوی د سمند را و بېړ یو شخه رټ ناخبر ه وو . همد او
چه یې له دې خبرې شخه انکارو کړاووې ویل :

« صاحبه ! مو ز سمند ر یزیون نه شو کولای . ځکه چه د بحر په با ره کښې
هیڅ معلومات هم نه لرو . » مګر ورو سته یې د یوه فکر ته د اخبره
ور غله او خان ته یې وویل :

« صاحبه ! موږ په خپل فکر کښې یو تجد ید نظر کولا ی شوا وهغه
دا چه کله تاسي وینز ی ته جا رانو ته اجـازه ورکړی ، چه مـوږ ته

لار ښود نه و کړی دوی د سمند رسره ښه بلد دی او موږ به د دوی له برکته په حفاظت کښې یو . اما پر کوبلای خان دې خبر و اغیزه و نه کړه.

بحث په ورځو ورځو دوام وکړ . په پای کښې د همدې بحث په منځ کښې مارکو له هند څخه بیرته راغی او هر څا څپلې خبرې ان تر هغو پورې وځنډولې څو چه په هغه راپور خبر شي چه ده د خان د پاره ترتیب کړی ؤ .

له راپور څخه داسې ښکاره شوه چه ده نه یوازې هند کتلی ؤ بلکه په « څو څو سمندرونو » کښې یې هم د هند د سمندر په شمول یون کړی ؤ . د لته ؤ چه د پارسیانو زړه راپور ته شوا و څوك چه یې غوښته هغه فقط همدی ؤ . د لته ؤ چه یې خان ته وو یل :

« ای د خانانو خانه ! پرېږده چه وینزیان موږ ته لار ښودنه وکړي . پرېږده چه داخلك موږ او شهزادګی کوکا چین سلامت خپل کور ته ورسوي . پر ته له دې بله هیڅ لاره نشته . »

په پای کښې کوبلای خان یعنی هغه چا ـ چه هم په زړه کښې یو هیله چه د پارس نماینده ګان په حقه دي او هم یې داغوښتل چه باید خپل تر بور په پارس کښې له ځان څخه په کور نیو مسائلو کښې هم د سیاسی مسائلو په شان خوښ کړی ـ خبرې ته غاړه کېښوده .

خان د مارکو په دلاسه ور کولو ته سخت خپه و . امادو مره یې و کړه چه پولو ګان یې په ډېر و ګرانو سوغا تو نورت بار کړل او د سفر ډېر ښه ترتیبات یې ورته و نیول .

ده یوځل بیا هم د فرانسې - انګلستان او هسپانیې پاچها یانو او پاپ ته پیغامونه ور واستول . مګر دا ځل یې هیڅ کومه غوښتنه ورځخه ونه کړه - ځکه دي پوهېده چه پولوګان بېرته نه راځي . داهرچاته یوه له ویرنه ډکه جدایي وه .

پولوګان - شهزادګی او د پارس ریباران وارهٔ د بېروزیاتو عملهٔ وو سره جنوب ته مخ په زیتون وروخوځېدل.

دلته د پارلس سترې په اذوقه بار بېړۍ د دوی را تنګ ته په انتظار کښې وې. له دې ځایه په بېړۍ کښې سپاره او د چین په سمندر کښې لاهوشول . چینې بېړۍ چه پولوګانو چلولې ډېرې زړې اما د سمندر د پاره ډېرې ښې وې. دې وو دهغوارو پایي بېړیو ځخه چه « ګیلی » بلل کېدې ډېر زیات توپیر لاره.

ددې بېړیو « پوندې » ډېرې لوړې جوړې او د عرشی سریې بېت و. دې بېړیو ځلور ډېر که او ځلور باد وانونه لرل . هرې بېړۍ له درې دوو ځخه ترځلو رسوو تنو پورې پاروهو نکی لرل . دسېر لیو او کار کوونکو او کالیو د پاره جلا جلا ځا یونه پکښې موجودوو . نو له دې امله پولوګان ناراحته نه وو .

درې میاشتې یې د چین او کوچین چین د ساحل سره مخ کښته بېړۍ وچلولې او ترځو چه بالاخره د ملا یا شبه جزیرې ته ور و رسېدل .
په سماترا Sumatra کښې یې ځلور هفتې دمون سون دبادونو په انتظار تېرې کړې .

د وي د لته د کرګدن» ولیدا و په غلطه سره یې د ا فکر و کړ چه ګونډې داهغه افسانوي اس دی چه په تندی کښې ښکرلري د غه ډول یې دونو ډېر زیات ګران ډولونه هم ولیدل.

په سیلون کښې یې هم څه موده تېره کړه او دمار کوپولو په قول دوی هلته شنه او سره یاقوت او ډېرې زیاتې قیمتي ډبرې ولیدې دغه ډول یې په لا ره کښې ګله چه د هند و ساحل څخه تېرېدل زمریان - پړانګان اود تودې منطقې مرغان هم ولیدل . په همدې ترتیب دوی دامړي ځل دباره د پوميې کښېتونه ولېدل او هم یې د پر سټر جا ن Prester John خبرې واورېدې .

پر سټر جا ن یو ا فسا نوي مخلو ق ؤ چه ټو ل ار و پا یا ن یې په مو جودیت معتقد وو . ویل کېدل چه دا یو ډېر ستر اوقوي عیسوي پاچا دی چه په لرې شرق کښې هستوګنه لري .

یوره ځېچا ته هم نه وه څرګنده چه چېرته دی چا به ویل چه په آسیا کښې او چا به ویل چه په ا فریقا کښې . دا دو مره مهمه نه وه اماویل کېدل چه ډېر زیات شتمن دی او ټول اروپایان په دې معتقدو وچه یوه ورځ به دی له عیسوي نړۍ سر ه په تما س کښې شي او ګله چه د غه ورځ - را شي نو وای د مسلما نا نو به حا ل . در سته د ه چه د پر سټر جان قلمرو هېڅکله هم ونه موند ل شو . ا ما د مو جو دیت عقیده یې د منځنیو پېړیو په سرتر سره ا کتشا فاتو باند ې ډېره ز یاته اغیزه لرله دبېرهند په منځ کښې ووچه پولو ګان د ډېرو خطرنا کو

طوفانونو سره مخامخ شول او ډېر زیات ملګري یې په طاعون مړه شول
په مړو کسانو کښې د ایران نمایندګان هم شامل وو . مګر پولوګان
د شهزادګۍ سره چه د ۱۲۹۲ ع په پسرلي کښې د پارس دربار ته ورسول شوه
ژوندي پاتي شول . له بده مرغه چه د پارس پاچا هم مړ شوی ؤ او داسي
فیصله وشوه چه شهزادګۍ باید دغه پرځای ددې زوی ته واده شي .

پولوګانو وروسته د پوره دمې جوړولو څخه له خپلې وظیفې څخه
رخصت واخست او مخ په خپل کور روخوځېدل . له زیتون نه تر هرمز پورې
سفر دوه کلونه ونیول . په پای کښې وروسته له پنځه ویشت کاله
مسافرۍ څخه پولوګان بېرته وینز ته ورسېدل .

په لومړي سر کښې په وینز کښې هېچا هم د خپلې کورنۍ غړیو هم ونه
پېژندل . ایا رښتیا هم دغه زیږه خلك چه یې عجیبې جامې په تن کړې
او ماته ګوډه ایټالیائي وائي نکولو - میفیو او مارکو پولو دي ؟
اما په پای کښې کله چه خلکو هغه ګران جواهر - ښکلي ورېښم
او سره زر ولیدل چه دوی راوړي وو او د دوی کیسې یې واورېدې
نو یې دا ومنله چه دا ددوی هغه خپلوان دي چه شرق ته تللي او ټولو
خلکو مړه ګڼلي وو .

کله چه هم چه د مارکوپولو او د اکتشافاتو ورځې پای ته
رسېدلې وې اما د ماجراجویۍ وخت یې لا هم نه ؤ تمام شوی . وینز ته
د پولوګانو د بېرته راتګ څه زیاته موده لا نه وه تېره چه د ایټالیې او جینوا Genoa
تر منځ جګړه ونښته . مارکوپولو د یوې وینزي بحري قوماندانی

په غاړه واخسته او په هغه جنګ کښې چه وینزیانو ما ته یکښې وکړه دوښمن دجګړې نو په لاس کښې کښېووت او په جینوا کښې بندي کړې شو. په جېل کښې مارکو پولو له یوه بل قیدي سره چه اصلاد پیسا Pisa و ملګرې شو.

ددې سړي نوم رستیشیانو Rusticiano و.

دجېل په موده کښې مارکو پولو دخپل سفر کیسې دې ملګري ته وکړې. ده خلاف دنورو خلکو مارکو خبري ټکی په ټکی ومنلې او مارکو پولو ېې تشویق کړ چه دخپل سفر کیسه و لیکي. اما مارکو پولو لیک نه لاره. نو ېې دا ښه وګڼله چه خپله کیسه به خولهووایی او یو بل شوك ېې و لیکي.

همدا سې ېې وکړه او زموږ دوخت دډېرو مشهورو خلکو په شېر دده کیسه هم په ورو ستیو څو میاشتو کښې خپله ده له خولي رستیشیانو و لیکله.

په پای کښې دوی دواړه له جېل نه خلاص شول. مګر نه تر هغه وخته پورې چه خوېې کار خلاص ېېده.

رستیشیانو دغه کتاب د مارکوپولو سیاحتنامه

The adv entures of Marcopolo و باله او دا روپا په ټولو ژبو ترجمه شو.

اما سره له دې هم په لومړي سر کښې دا کتاب داسې ګڼل کېده لکه یوه دېریانو کیسه او داسې او ستل کېده لکه موږ چه اوس

دار تر پاچادسر گذشت او د گرده پېژ وسر دارانو کیسه لولو اما په پای کښې یې د ډېر زیات تاثیر و کړ .

زمانه تېره شوه او اروپایان د سمندر د یون سره زیات اشنا شول . د شرق په امپراتورۍ کښې جګړې و نښتې او پخوا نۍ تجارتی لارې قطع شوې . هغو تجارانو چه غوښتل یې د مسالو جاتو جزیرې ته نوې لارې و مومي د مار کوپولو سیاحت نامه کتاب ولوست . د وی هېڅکله هم دغه کیسه د پریانو و نه ګڼله . په پای کښې دوی ځینو نوي زره پورې نتایجو ته ورسېدل .

که څه هم چه د دوی ډېرې زیاتې فرضیې غلطې وې اما سره له دې یې هم پېروار یانوو نکو سمندر یز و یونو نو ته ورو کشول .

په حقیقت کښې دا ډېره ګرانه ده چه د یې سړی د مار کوپولو د کتاب تاثیر اتد اروپا د څور لسمې، پنځلسمې او شپاړسمې پېړی پر اکتشافاتو قیاس کړی .

دی یو ډېر خارق العاده انسان ؤ . او ده په خپل و خت کښې تر ټولو، د ځان نه د مخه او ور وسته سیاحانو څخه ، دنړۍ ډېر زیاته برخه ولیده . په حقیقت کښې دده ژوند هم د کوبلای خان د دربار په شان «د ومره عجیب و چه بیان یې په خوله ګران دی .»

# سمون لیک

| مخ | لیکه | ناسم | سم |
|---|---|---|---|
| ۱۱ | ۱۱ | کازوه‌ازه | کـازه وازه |
| ۲۹ | ۷ | Sipou | Sidon |
| ۳٤ | ۱۰ | شپږی | شپږ |
| ۳۵ | ۱٤ | زوړور | زړور |
| ٤٤ | ۲ | ځکه دهغه | ځکه‌ده هغه |
| ٤٤ | ٦ | عکسبری | عسکری |
| ٦٦ | ۱ | میلونو | ملیونو |
| ۸۱ | ۵–او۹ | بیت‌الحم | بیت اللحم |
| ۸۹ | ۱۳ | لومړی یو | لومړیو |
| ۹۷ | ۲۰ | تېېزی | تهزي |
| ۱۰۹ | ۱۵ | پلرولو | پلورلو |
| ۱۱۵ | ۹ | بیت‌الحلم | بیت اللحم |
| ۱۲۲ | ۲ | جنګوونو | جنګونو |




# A SHORT HISTORY OF EXPLORATION

## From 2000 Years B. C. to the Great Age of Discovery

by

ISABEL BARCLAY

Translated by

HABIBULLAH TEGEY

Pashto Academy

Kabul, Afghanistan

دولتی مطبعه

1962